


**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو
د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو
د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د دیني ښوونې

# د تدریس لارښود

## څلورم ټولګی






د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش





**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا او د

ښوونکو د روزنې معينيت

د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي

کتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونکي کتاب

# د ديني ښوونې د تدريس لارښود

# څلورم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش

**ليکوالان:**

- ګل آقا شایق د تعلیمي نصاب د پراختیا ریاست علمي غړی.
- مریم نیازۍ د تعلیمي نصاب د پراختیا ریاست علمي غړې.
- سعید احمد شریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا ریاست علمي غړی.
- عبدالسلام تائب د تعلیمي نصاب د پراختیا ریاست علمي غړی.

**علمي او مسلکي اډېټ:**

- محمد آصف کوچی

**دیني، سیاسي او کلتوري کمېټه:**

- محمد عارف لودین

**د څارنې کمېټه:**

- دوکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین.
- دوکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رئیس.
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**کمپوز او ډیزاین:**

وحیدالله محمدی



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتوناو هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر





**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزير پیغام**

د لوی خدای جل جلاله ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل ديني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام بری د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدای جل جلاله څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

## فهرست

**لومړی لوست**

**سرلیک: عقیده**

**مخ:۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- وپوهیږي چې اسلامي عقیده د ټولو عملونو بنسټ ده.
- د ایمان او اسلام ارکان وپیژني.
- د اسلامي عقیدې په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.

**اړینه پوهنه**

**د اسلامي عقیدې نومونه**

**د عقیدې په هکله اسلامي علماء مختلفې اصطلاح ګانې کاروی لکه: عقیده، توحید، د دین اصول، فقه الأکبر او د کلام علم– موږ په لاندې کرښو کې غواړو د اړتیا په کچه د پاسینو اصطلاح ګانو سره آشنا شو:**

**۱– د عقیدې تعریف: د عقیدې لفظ چې جمع یې عقاید ده د (عقد) له مادې څخه اخستل شوې او عقد د لغت له مخې لاندې معناوې لري: غوټه، پیوند، سختی، اثبات، یقین او نور... او په اصطلاح کې د عقاید و علم داسې تعریف شوی دی:** (علم یقتَدِر به علی اثبات العقائد الدینیة بإیراد الحجج علیها و دفع الشبهة عنها)

**یعنی عقاید د هغه علم څخه عبارت ده چې انسان د هغه په واسطه د دیني عقایدو په اثبات او پر هغو دلایلو په وړاندې کولو او د شبهاتو په دفع کولو قادر او برلاسی وي.**

**۲– توحيد:** توحيد په لغت کې د (وَحَّدَ يُوحِّدُ تَوْحِيدًا) مصدر دی او د يووالی ګڼلو په معنا او يا د چا په يووازوالی دلالت کوي. او په اصطلاح کې الله په ربوبيت (افعالو)، الوهيت (عباداتو)، اسمونو او صفتونو، تشريح او تقنين (قانون جوړولو) کې يو ګڼل دي.

**د توحيد ډولونه**

**۱– د الوهيت توحيد**

**۲– د ربوبيت توحيد**

**۳– د اسمونو او صفتونو توحيد**

**۴– د دين اصول:** اصول د اصل جمع ده، اصل په لغت کې ريښې، بنسټ او تهداب ته ويل کيږي، هر کله چې اسلامی عقايد د ټولو مسايلو او احکامو اساس او بنسټ ګڼل کيږي نو له دې کبله هغه ته د دين اصول هم ويل کيږي.

**عقيده د انسان د ټولو عملونو اساس او بنسټ ده**

په واقعيت کې اسلامي عقيده د انسان د تولو عملونو جوهر او بنسټ ډېره ګڼل کيږي تر څو چې د انسان عقيده سمه نه وی د هغه هيڅ عمل د الله په دربار کې د قبوليت شرف نشي حاصلولی، دا له دې کبله چې د انسان تر ټولو لومړنی تکليف په الله تعالی او د اسلام په ضروورياتو ايمان راوړل دي لکه څنګه چې حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه د يمن په لوری ليږلو نو ورته ويې فرمايل: (فليَكن أوَّل ما تدعوهم إليه أن يُوحدوا الله تعالى، فإذا عرَفوا ذلك، فأخْبِرهم أن الله فرَض عليهم خمس صلوات) يعنې تر ټولو د مخه لومړنی شی چې دوی ورته را غواړې هغه دا چې توحيد قبول کړي، کله يې چې توحيد ومنلو بيا ورته ووايه چې الله تعالی په دوی پنځه وخته لمونځونو فرض کړي دي.

**د ايمان ارکان**

د ايمان ارکان د قرآني آيتونو په استناد سره داسې څيرو:

**۱- په الله تعالی باندې ایمان** (مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ)

**۲- په پرښتو باندی ایمان** (وَالْمَلاَئِكَةِ)

**۳- په هغه کتابونو ایمان چې الله تعالی پر پیغمبرانو نازل کړی دي** (وَالْكِتَابِ)

**۴- په ټولو پیغمبرانو ایمان** (وَالنَّبِيِّينَ)

**۵- د آخرت په ورځ ایمان** (وَالْيَوْمِ الْآخِرِ)

**۶- د خیر او شر په اندازه ایمان** (إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ).

**د اسلام ارکان**

**اسلام پر پنځو رکنونو بنا شوی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دارنګه بیان کړی دی:** ﴿بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ﴾. (رواه البخاری) **یعنی اسلام پر پنځو بنسټونو بنا شوی دي: په دی ګواهی ورکول چې د الله نه پر ته بل د بندګی بر حق لایق نشته او دا چې محمد (صلی الله علیه وسلم) د الله پیغمبر دی، او د لمانځه قایمول، د زکات ورکول، حج کول او روژه نیول.**

**د سمې عقیدې ګټه**

**سمه او صحیح عقیده په وینا کې د انسان د هدایت لامل کیږي او همدارنګه هغه د آخرت له عذاب څخه ژغوری. الله تعالی فرمایلي دي:** ﴿الَذين آمنوا ولَم يَلْبِسُوا إيمانَهُم بظلمٍ أُولَئك لَهم الأَمْنُ وَهُم مُّهتدون﴾ (الانعام ۸۲) **ژباړه: نو هماغه خلک چې ایمان یې راوړی اوخپل ایمان یې له ظلم (شرک) سره نه وي ګډ کړی د همدوی لپاره امنیت دی او همدوی په سمه لار برابر دي.**

**د تدریس لارې:**لکچر، سوال او ځواب، ډله ییزبحث.

**مرستندویه درسي توکي:**درسي کتاب، کتابچه، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| وخت۴۵ دقیقې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له سلام، روغبړ، د زده‌کوونکو د نوي ټولګي تـه د ارتقاء مبارکي ویلو، او له حاضرۍ اخیستلو څخـه وروسـته هغـو موضوعاتو ته چې په تیر کال کې د څلورم ټولګي د دینـي ښـوونې مضمون زده‌کوونکو ته ورپیژني او هغه عناوین او مطالب چې په دې کال کې تدریس کیږي معلومـات ورکـوي او همدارنګـه د دې مضمون د ارزښت په اړه زده‌کوونکو سره بحث کوي. | زده‌کوونکي سلام او روغبړ ته ځواب ورکوي. |
| نوی لوست وړاندې کول ۲۵ دقیقې | وروسته ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د پام را اړولو لپـاره هغـه موخې او اهداف چې د دې کتاب د مطالبو د تدریس څخـه وروسـته باید ورته ورسیږي، په ښکاره ډول بیانوی او د لاندې پوښتنو په طـرح کولو سره په زد ه کوونکو کې د نوي لوست انګیزه خلق کوي.<br>وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک ( عقیده) پرتختې لیکـي، د زده‌کوونکو پام ورته اړوی او لوست په مناسب غږ لولي. وروسته په څو تنو زده‌کوونکو باندې لوست لولي او په همدېوخت کې ټـولګي کنترولوي او د زده کوونکو اشتباهات اصلاح کوي. پـه همـدې وخت کې د لوست مهم ټکي( د عقیدې صحت، د آخـرت ورځ، د خیر او شر تقدیر او اندازه) پر تختې لیکي.<br>وروسته لوست تشریح کوي او بیا زده‌کوونکو ته لارښوونه کـوي چې لوست په کراره ولولي او بیازده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپل منځ کې د عقیدې د لغوي او اصطلاحي معنـی، د عقیـدې د تعریف په اړه بحث وکړي. | زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته په دقت غوږ نیسي.<br><br>زده‌کوونکي په خپلو منځو کې بحث کوي. |

| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>عقیده ایمان او باور ته وایي او د ټولو عملونو اساس او بنسټ دی. موږ په الله جل جلاله، ملایکو، آسماني کتابونو، پیغمبرانو، د آخرت په ورځ او د خیر او شر په تقدیر ایمان لرو. سمه عقیده د انسان د دنیا او آخرت بریالیتوب دی. | |
|---|---|---|
| ارزونه<br>۳ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د د درسي کتاب د لارښونې سره سم زده کوونکي ارزوي. | د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| کورنۍدنده<br>۲دقیقې | ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي خپله کورنۍدنده په خپلو کورونو کې تر سره کوي. |

**دوهم لوست**

**سرلیک: الله**

**مخ:۳**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- الله تعالی وپیژني.
- د الله ځینې صفتونه درک کړي.
- د عبادت معنا او مفهوم بیان کړای شي.
- د الله تعالی له عبادت سره مینه وښيي.

**اړینه پوهنه**

**- د (الله) د لفظ په هکه خبرنه:**

**د الله لفظ چې اصل يې (اله) دی د لغت له مخې په هر معبود اطلاق کيږی برابره ده حق وي يا باطل. او د اصطلاح له مخې يې د سپيڅلي الهی ذات په اطلاق غلبه موندلې او د هغه تعالی ذاتي نوم يې ځان ته غوره کړی دی لکه چې د دې لفظ په تعريف کې فرمايي:«الله علم على الذَّات العليَّة الواجبة الوجود، الجامعة لصفات الألوهيّة» يعنی الله نښه ده په واجب الوجود عالی ذات باندې جې الوهيت په صفاتو مشتمل دي او په بل هيچا يې اطلاق صحيح نه دی يوازې همدا بر حق معبود دی او له ده پرته بل بر حق معبود نشته– د يادولو وړ ده چې د الله لفظ د څه شي نه مشتق شوی نه دی بلکې جامد لفظ دی.**

**د (الله) د لفظ جامعيت او شموليت**

د الله په نومونو کې د (الله) لفظ ډېر جامع او شامل لفظ دی او له همدی کبله هغه ته اعظم اسم ويل کيږي، ځکه د الله لپاره بل داسی جامع نوم چې د الله تعالی په ټولو صفتونو ستايل شوی وي، نشته. د حشر سورت په ۲۲ آيت کې د الله د صفتونو په بيان کې د الله لفظ يې د نورو صفتونو موصوف گرځولی چې فرمايي: ﴿هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ﴾[الحشر/۲۲] ژباړه: الله هغه ذات دی چې له هغه پرته کوم معبود نشته په پټه او ښکاره هر څه باندي پوهيدونکی دی هغه رحمان او رحيم دی. او همدارنگه فرمايی: ﴿هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ [الحشر/۲۳] ژباړه: الله هغه ذات دی چې له هغه پرته بل معبود نشته، هغه پاچا دی، ډېر مقدس، له ټولو عيبونو څخه سالم امان ورکونکی، ساتونکی په ټولو بر لاسی به زوره د خپل حکم نافوذونکی او د لويۍ څښتن لويی کوونکی پاک دی الله له هغه شرک نه چې خلک يي کوي.

**د عبادت مفهوم**

عبادت د ذلت اظهار او د الله تعالی په وړاندې د ډېرې لوړې درجې د ذلت او عاجزی په معنا دی. د عبادت د ارزښت د بيان لپاره همدا بس ده چې د کايناتو پيدايښت او د پيغمبرانو راليږنه (تکويني او تشريعی عالم) د عبادت لپاره ده. الله تعالی فرمايی: ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ [الذاريات: ۵۶]

ژباړه: ما پيريان او انسانان نه دي پيدا کړي مگر د دې لپاره چې زما عبادت وکړي.

د الله ټولو پيغمبرانو د دعوت او بلنې موخه همدا د الله د خالص عبادت او لمانځنې مسله ده لکه چې فرمايي: ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ﴾ [النحل: ۳۶]

ژباړه: او موږ هر ولس ته يو رسول وليږه چې الله ولمانځئ او له باطلو معبودانو ځان وساتئ.

حال دا چې الله تعالی زموږ عبادت ته اړتيا نه لري الله پاک فرمايي: ﴿فانّ اللّه غنیٌّ عنکم﴾ يعنې الله تعالی له تاسې نه مستغنی دی نو د انسان د عبادت ثمره او گټه همده ته راگرځي.

## شرک تر ټولو لویه ګناه

**د شرک تعریف:** شرک دا دی چې څوک د الله تعالی سره په یوه کار کې چې هغه خالص د الله حق وی (څه مخلوق یا نور څه) شریک وګرځوی. مثلاً د الله سره پیریان، پرښتې او یا تیږه، لرګی او نور شریک کړي او د هغه عبادت لمانځنه وکړي او فرمان یې یوسي او یا ورڅخه مرسته وغواړي او یا داسې کار وکړي چې د الله پرته یې بل لایق نه وي.

حقیقت دا دی چې د الله تعالی سره شریک کول د الله په حق کې او په خپله د انسان په حق کې لویه ګناه او لویه جفا ده. الله تعالی جنت پر مشرکانو حرام کړي لکه چې فرمايي: ﴿إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّهُ عَلَيهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ﴾ [المائده: ۷۲]

ژباړه: پرته له شکه چاچې له الله سره څوک شریک وګنه الله پر هغه جنت حرام کړی او د هغه ځای دوزخ دی او د داسې ظالمانو هیڅ مرستندویان نشته.

او بل ځای داسې فرمايي: ﴿إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاءُ وَمَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْماً عَظِيماً﴾ [النساء: ۴۸]

ژباړه: یقیناً الله شرک نه بخښي او له دې پرته (نور ګناهونه) چاته چې وغواړي بخښي یې او څوک چې الله سره شرک کوي نو یې شکه چې هغه لوی دروغ پورې کړل.

**د تدریس لارې:**لکچر، سوال او ځواب، ډله ییزبحث.

**مرستندویه درسي توکي:**درسي کتاب، کتابچه، تخته او تباشیر

## د لوست بهیر

| وخت۴۵ دقیقې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| **۵ دقیقې** | ښاغلی ښوونکی له سلام، روغبړ، او له حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته د تیر لوست د ارزونې لپاره لاندې پوښتنې مطرح کوي:<br>• عقیده څوک تعریف کولای شي؟<br>• د ایمان ارکان کوم دي؟<br>• د اسلام ارکان کوم دي؟ | زده‌کوونکي سلام او روغبړ ته ځواب ورکوي. |
| **نوی لوست وړاندې کول ۳۰دقیقې** | وروړسته ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د پام را اړولو لپاره هغه موخې او اهداف چې د دې لوست د مطالبو د تدریس څخه وروسته باید ورته ورسیږي، په ښکاره ډول بیانوی وروسته د نوي لوست په اړهد څو پوښتنو په طرح کولو سره په زد ه کوونکو کې د نوي لوست انګیزه خلق کوي.<br>وروسته ښوونکی د نوي لوست سرلیک(الله جل جلاله) پرتختې لیکي، د زده‌کوونکو پام ورته اړوی او لوست په مناسب غږ لولي.<br>وروسته په څو تنو زده‌کوونکو باندې لوست لولي او په همدېوخت کې ټولګی کنټرولوي او د زده کوونکو اشتباهات اصلاح کوي.<br>وروسته لوست تشریح کوي بیا د زده کړې د چارو د ښه ترسره کولو لپاره په ټولګي کې د سوال او ځواب لپاره زمینه برابروي تر څو زده کوونکي د لوست د مطالبو په اړه خپلې پوښتنې مطرح کړي، ښوونکی زده کوونکي هڅوي او پوښتنو ته یې ځوابوي. وروسته زده | زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته په دقت غوږ نیسي.<br><br>زده‌کوونکي په خپلو منځو کې بحث کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | کوونکي په څو ډلو ویشي او هغوی ته لارښوونه کوي تر څو په خپلو منځو کې د دې په اړه چې ځمکه، غرونه، ونې، کانې، بوټې، آسمانونه او ټول مخلوقات الله جل جلاله پیدا کړي دي، بحث کوي. | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز**<br>الله جلا جلاله یو دی شریک او سارى نه لري. پر هر څه عالم دی او هیڅ شی له الله جل جلاله څخه پټ نه دي. ټول کائنات الله جل جلاله پیدا کړي دي هیڅ کار د الله جل جلاله د ارادې پرته نه ترسره کیږي. موږ. یواځې د الله جل جلاله عبادت کوو. | |
| ارزونه<br>۳ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د دې لپاره چې پوه شي آیـــا زده کـــوونکي هغـــو وړتیاوو او مهارتونو ته چې هیله وه ورسیږي زده کـــوونکي داســـې ارزوي:<br>● څنګه کولای شو د الله عبادت وکړو؟<br>● د الله پاک د ځنو صفتونه ووایئ.<br>● ټول کاینات چا پیدا کړي دي؟<br>وروسته ښوونکی د زده کوونکو د قوت او ضعف ټکـــي مشـــخص کوي او هغوی ته اړینه لارښوونه کوي. | د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| کورنیدنده<br>۲ دقیقې | ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب د لارښوونې ســـره سم کورنۍ دنده سپاري او د زده کوونکو څخه د زده کړې په ترڅ کې د ښو ونډو اخیستلو لپاره مننه کوي او لوست پای ته رسوي. | زده‌کوونکي خپله کورنیدنده په خپلو کورونو کې تر سره کوي. |

**دریم او څلورم لوست**

**سرلیک: د الله تعالی ذاتي صفتونه**

**مخ: ۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د الله تعالی ذاتي صفات وپېژني.
- د الله تعالی د ذاتي صفتونو مفهوم درک کړي.
- د الله تعالی د صفاتو د توضیح او تشریح لپاره دلایل بیان کړی شي.

**اړینه پوهنه**

**د الله تعالی د قدرت صفت**

**د الله تعالی د صفتونو څخه یو صفت قدرت دی یعنی الله تعالی د ډیر لوی قدرت لرونکی دی او هیڅ مخلوق د داسې قدرت خاوند نه دی، د دې لپاره چې د الله د قدرت صفت مفهوم سم وپیژندل شي علماء لیکي چې له دغو صفتونو څخه استفاده شوې ده: (القوی، المتین، العزیز، القادر، المقتدر) د دې صفتونو معنا وې سره نږدې دي لکه چې فرمایي: ﴿إِنَّ الْعِزَّةَ لِلّهِ جَمِيعًا﴾**[یونس:٦٥].

**ژباړه: عزت (قدرت) ټول د الله لپاره دی. او فرمایي: ﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيزُ﴾**[هود:۶۶].

**ژباړه: ستا رب پیاوړی او غالب دی. الله تعالی په بیشپړه توګه د قدرت او بهتری د دری ګونو مفاهیمو لرونکی دی:**

**۱- عزت په قدرت او توانمندی کې (القوی) او (المتین) نومونه د عزت پر مفهوم دلالت کوي او دا د هغه لوی صفت دی د مخلوقاتو قدرت که هر څومره لوی وي هغه ته نه شي رسیدای.**

۲- عزت په غوره والي او بې حاجتۍ کې، الله بی نیازه ذات دی هیچا ته اړتیا نه لري ﴿اللَّهُ الصَّمَدُ﴾ یعنې الله بې حاجته دی.

۳- غوره والی او غالبوالی، د الله د عظمت په وړاندې ټول کاینات غاړه ایښودونکي او د ده ارادې ته تسلیم دي ﴿ مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ ﴾ [لقمان:۲۸]

ژباړه : ستاسو ټولو انسانانو پیدا کول او بیا دوهم ځل ژوندي کول خو د هغه لپاره داسی دي لکه د یو ساکښ پیدا کول او بیا ژوندي کول.

**د ارادې صفت او ډولونه يې**

اراده هم د الله تعالی له صفتونو څخه ده او په دوه ډوله ده:

۱- کوني اراده چې د مشیت په معنا ده.

۲- شرعي اراده چې د محبت په معنا ده.

د کوني ارادې دلیل: الله تعالی فرمايي: ﴿ فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ﴾ [الأنعام: ۱۲۵]
ژباړه: نو دا حقیقت دی چاته چې الله د لارښوونې اراده وکړي د هغه سینه د اسلام لپاره پرانیزي.
د شرعي ارادې دلیل: الله تعالی فرمايي:﴿ وَاللَّهُ يُرِيدُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْكُمْ ﴾ [النساء: ۲۷]
ژباړه: هو الله تاسې ته له رحمت سره پاملرنه کول غواړي.

**د کوني او شرعي ارادي ترمنځ توپیر**

په کونیه اراده کې دایم باید مقصود او مراد تر سره شي او مراد ممکن دی الله ته محبوب او خوښ وواسي او ممکن دي چې الله يې دوست ونه ګنې.خو په شرعی اراده کې د مقصود او مراد واقع والی او حاصلیدل لازم نه دی خو مقصود او مرام الله ته محبوب او خوښ دی.

**د سمع صفت او ډولونه يې**

د الله د ذاتي صفتونه څخه یو بل صفت سمع دی یعنی اوریدنه، د سمع صفت الله تعالی ته د کمال په توګه ثابت خو ثبوت يې داسې دی چې الله د شان سره لایق او مناسب وي لکه چې په فقه اکبر کې وايي:

(يسمَعُ لاكَسَمعِنا) يعنى الله تعالى اوري خو نه زمونږ د اوريدنې په څير. الله فرمايي: ﴿وَهُوَٱلسَّمِيعُ ٱلعَلِيمُ﴾ يعنى هغه اوريدونکى عالم دى

**د الله تعالى د سمع صفت ډولونه**

١- سمع د قبوليتا په معنا دى چې په دې توګه د فعلي صفتونو څخه ده او مثال يې دا د الله تعالى وينا ده: ﴿إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ الدُّعَاءِ﴾ [ابراهيم: ٣٩] ژباړه: يقيناً رب مې خامخا د دعا اوريدونکى دى.

٢- سمع د مسموع ادراک په معنا ده لکه په دې مبارک آيت کې چې ذکر شوي دى:﴿قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا ﴾[المجادله: ٦٠] ژباړه: الله د هغې ښځې وينا واوريدله چې د خپل ميړه په باب له تا سره سوال او ځواب کولو.

**د الله تعالى د بصر صفت او ډولونه يې**

د الله تعالى د بصر له صفت څخه د الله د ليدنې صفت دى چې الله تعالى ټول ځيزونه ويني او هيڅ شى د الله د ليد او نظر نه پټ نه دى او دا صفت هم الله تعالى ته ثابت دى په داسې ډوګه چې د ده شان سره ښايي.

**د الله تعالى د دې صفت ډولونه**

بصر د مبصراتو او مرئياتو د ادراک په معنا دى او دليل يې د الله تعالى دغه آيت دى: ﴿إِنَّنِي مَعَكُمَا أَسْمَعُ وَأَرَى﴾ [طه: ٤٦]. ژباړه: زه ستاسو دواړو سره سم يم اورم او وينم. همدارنګه په بل آيت کې فرمايي: ﴿وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلبَصِيرُ﴾ [الاسراء: ١] هغه تعالى اوريدونکى ليدونکى دى.

بصر د علم په معنا دى او دليل يې دا د الله تعالى وينا ده: ﴿إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيدًا۝وَنَرَاهُ قَرِيبًا﴾ [المعارج: ٦-٧] ژباړه: دوى هغه (قيامت) لرې ويني او موږ يې نږدې وينو.

### د الله تعالی د علم صفت

الله تعالی هغه ذات دی چې دننه او بیرون، په ښکاره او پټ، په واجباتو، په محالاتو او ممکناتو او په علوی او سفلوی نړۍ، په تیره زمانه، اوس او راتلونکې باندې په بشپړه توکه خبر دی. د الله تعالی د علم او خبرتیا په هکله ډیر نصوص راغلی دي. د ذرې په اندازه یا له ذرې څخه وړوکي یا غټ که په اسمانونو کې دي یا په ځمکه کې د الله تعالی څخه پټ نه دی، الله تعالی نه غفلت کوی او نه هیروي. د خلکو ډول ډول علم او پراخه پوهه د الله د علم او پوهې سره هیڅ پرتله کیدای نه شي، نو هیڅ شی د الله په وړاندې پټ نه دي. لکه څرنګه چې الله پاک فرمایي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ ﴾ [الانفال: ۷۵] ژباړه: الله پاک پر هر څه دانا دی، او همدارنګه فرمایي: ﴿ وَهُوَ ٱلۡقَاهِرُ فَوۡقَ عِبَادِهِۦۚ وَهُوَ ٱلۡحَكِيمُ ٱلۡخَبِيرُ﴾ [الانعام: ۱۸] ژباړه: یعنی هغه په خپلو بندګانو غالب او هغه حکیم او ډیر خبردار ذات دی.

### د حیات صفت

د الله صفتونو څخه بل صفت حیات دی، یعنی لوی او عظیم الله همیشه دی او هیڅکله مرګ نه پرې راځي د الله تعالی دا صفت څو ځایه په قرآن کریم کې ذکر دي لکه: ﴿ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلۡحَيُّ ٱلۡقَيُّومُ ﴾ [البقره: ۲۵۵]، یعنی د الله نه پرته بل الله نشته او هغه ژوندی او تصرف کوونکی دی. او همدارنګه فرمایي: ﴿ الٓمٓ ١ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلۡحَيُّ ٱلۡقَيُّومُ ﴾ [ال عمران: ۱-۲] یعنی الف، لام، میم، د الله نه پرته بل پر حق معبود نشته، او هغه ژوندی او قیوم دی.

د الله تعالی بل صفت القیوم دی،**حی** او **قیوم** صفتونه د الله د نیکو نومونو څخه دي او د قرآن په څنو آیتونو کې یو ځای ذکر شوي دي او د دې صفتونو یو ځای ذکر کول ډیر مناسب او موزون دي ځکه دا دوه صفتونه د کمال صفتونه په ځان کې را نغاړي. حی (ژوندی) یعنی هغه ذات چې حیات او ژوندې کامل دي او د الله تعالی ټولو ذاتي صفتونو ته لکه علم، قدرت، اراده، عظمت، کبریا او سپیڅلی ذات نورو صفتونو ته شاملیږي او قیوم (پایدار) یعنی هغه ذات چې همیشوالی یې کامل او بشپړ دی او دوه معنا وې لري:

- الله هغه ذات دی چې په خپل ذات پورې قایم دی او د لويو صفتونو خاوند دی او ټولو خپلو مخلوقاتو څخه بی نیازه دی.
- آسمانونو او ځمکه او هغه مخلوقات چې په ځمکه او آسمانونو کې دي د هغه په وسیله قایم ګرځیدلي دي.

**د کلام صفت** : د الله د صفتونو څخه یو بل د کلام صفت دی یعنی الله تعالی د خپل شان او مقام سره سم څرنګه چې دده سره لایق او مناسب دی خبرې کوي. خو د الله خبرې د انسانانو د خبرو په څیرنه نه دي. او باید مونږ عقیده او باور ولرو چې الله تعالی متلکلم دی او کلام یي قدیم دی نه مُحدث او جدید او دلیل پرې دا د الله تعالی وینا ده چې فرمایی: ﴿مِنهم مَن كَلَّم اللّه﴾ [البقره: ۲۵۳] یعنی ځینی هغه پیغمران دی چې د الله سره یې خبرې کړي دي او همدارنګه الله فرمايي: ﴿وَكَلَّمَ اللّهُ موسَى تَكلِيماً﴾ [النساء: ۱۶۴] یعنی الله د موسی علیه السلام سره خبرې وکړې.

**پنځم لوست**

**سرلیک: د الله تعالی فعلي صفتونه**

**مخ: ۹**

**وخت: درې درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- الله تعالی فعلي صفات وپيژني.
- د فعلي او ذاتي صفتونو ترمنځ توپير وکړی شي.
- د الله فعلي صفتونه نورو ته بيان کړی شي.

**اړينه پوهنه**

الله تعالی هغه ذات دی چې ټول مخلوقات او کاینات يې په خپل عظيم قدرت سره پيدا کړي دي او د کایناتو او موجوداتو په پيدايښت کې نه چا ورسره مرسته کړې ده او نه يې د چا څخه مرسته غوښتې ده لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿ هُوَ ٱللَّهُ ٱلۡخَٰلِقُ ٱلۡبَارِئُ ٱلۡمُصَوِّرُۖ لَهُ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰ ﴾ [الحشر: ۲۴] ژباړه: الله هغه ذات دی چې د هستونې پلان جوړوونکی او د هغه نافذوونکی او د هغه سر سم صورت جوړوونکی دی د هغه ډير غوره نومونه دي. همداړنگه الله فرمايي: ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ ٱلۡخَلَّٰقُ ٱلۡعَلِيمُ ﴾ [الحجر: ۸۶] ژباړه: په يقينی ډول ستا رب د ټولو هستوونکی او په هر څه پوهيږي.

**د الله د رزاقيت صفت**

د الله د عالي صفتونو څخه يو د رزاقيت صفت دی يعنی هغه ذات دی چې ټولو ژونديو مخلوقاتو او موجوداتو ته روزی ورکوي.

لکه الله فرمايي:﴿ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾ [الذاريات: ٥٨]٠

ژباړه: الله خو په خپله ښه روزی رسان دی د ډیر قوت خاوند او زورور.

همدارنگه الله فرمايي: ﴿ ۞ وَمَا مِن دَآبَّةٖ فِي ٱلۡأَرۡضِ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ رِزۡقُهَا ﴾[هود: ٦] ژباړه: په ځمکه کې هيڅ داسې کوم خوځنده ساکښ نشته چې د هغه روزی د الله په غاړه نه وي.

**د احياء او اماتت يعنی ژوندی کولو او مړه کولو صفت**

ژوند او مرگ دواړه د الله تعالی په لاس کې دی الله تعالی هغه ذات دی چې مخلوقاتو او موجوداتو ته ژوند او روح او همدارنگه مرگ ورکوي. ﴿الَّذي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا وَهُوَ الْعَزِيزُ الْغَفُورُ﴾ [الملک: ٢] ژباړه: هغه ذات چې مرگ او ژوند يې پيدا کړ تر څو چې تاسې وازمايي وگوري چې له تاسې څخه کوم يو د ډير ښه عمل کوونکی دي او هغه زورور هم دی او ښښونکی هم.

همدارنگه په بل ځای کې فرمايي: ﴿زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا قُلْ بَلَى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ وَذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ [التغابن: ٧] ژباړه: کافرانو له غټې دعوی سره ويلی دی چې هغوی به له مرگه سره ورروسته هيڅکله بيا را پاڅول شي، دوی ته ووايه (نه زما په رب قسم، تاسې به ارومرو را پاڅول شی، بيا به ارومرو درته وښودله شي چې تاسې (په دنيا کې) څه کړيدي او دا کار د الله لپاره ډير آسانه دی.

همدارنگه فرمايي: ﴿رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لاَّ رَيْبَ فِيهِ إِنَّ اللّهَ لاَ يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ [ال عمران: ٩] ژباړه: زموږ پروردگاره! ته ارومرو يوه ورځ د ټولو خلکو غونډوونکی يې چې د هغه په راتگ کې هيڅ شک نشته الله هيڅکله له خپلې وعدې په خلاف نه کوي.

**د رحمت صفت**

د الله د صفتونو څخه یو صفت رحمت دی چې په قرآن کریم کې په دوه کلمو (الرحمن الرحیم) کې ذکر شوی دی. الله تعالی پرته له شکه ډیر مهربان رحیم او کریم ذات دی، خپل بنده ګان له ټولو ګناهونو او نا فرمانیو سره یې بې حده نازوي او مهرباني پرې کوي او په ګناه یې فوراً نه رانیسي بلکې مهلت ورکوي څو ده ته رجوع وکوي او د خپلو کړونه پښېمانه شي.

الله تعالی فرمایي: ﴿ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ﴾[فاتحه:۲] یعنی ډیر بښونکی او مهربانه دي.

او همدارنګه فرمایي: ﴿وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ رَبِّي غَنِيّٞ كَرِيمٞ﴾[النمل: ۴۰] ژباړه: او څوک چې ناشکري وکړي نو زما رب یقیناً بې پروا سخاوت والا دی. الله په بل ځای کې داسې فرمایي: ﴿وَرَحۡمَتِي وَسِعَتۡ كُلَّ شَيۡءٖۚ فَسَأَكۡتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ﴾ [الاعراف: ۱۵۶] ژباړه: او زما رحمت پر هر څه خور شوی دی او هغه به زه د هغه چا لپاره ولیکم چې له سر غړونې څخه ډډه وکړي.

**د غضب صفت**

د الله تعالی د صفتونو څخه یو د قهر او غضب صفت دی یعنی الله تعالی په غوسه او غضب کیږي هم او الله تعالی خوشحاله کیږي هم لکه څنګه یې چې په عقیده طحاویه کې لولو: (والله يَغضَبُ ويَرضَى، لا كأحدٍ مِن الوَرَى) یعنی الله غوسه کیږي خوشحاله کیږي خو نه د مخلوقاتو په څیر.

او د الله غوسې په هکله په قرآن کریم کې راغلي دي: ﴿مَن لَّعَنَهُ اللّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ﴾ [المائده: ۶۰] ژباړه: هغه کسان چې الله ورباندې لعنت کړی او غضب یې ورباندې نازل کړی.

او په بل آیت کې فرمایي: ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِناً مُّتَعَمِّداً فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِداً فِيهَا وَغَضِبَ اللّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَاباً عَظِيماً﴾ [النساء: ۹۳] هغه څوک چې کوم مومن له پوهې او ادراک سره سره ووژنې نو د هغه سزا

دوزخ ده چې په هغه کې به د تل لپاره استوګن وي پر هغه د الله غضب او لعنت دی او الله د هغه لپاره لوی عذاب تیار کړی دی.

**د اعزاز صفت**

اعزاز په دې معنی چې عزت د الله په لاس دی چا ته چې الله عزت ورکوي هغه څوک ذلیلولی نشي، حقیقت دادی چې یوازې الله عزت ورکوي ﴿ إِنَّ ٱلۡعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ﴾ [يونس: ٦٥] یعنی عزت ټول یو الله سره دي. الله پاک فرمايي: ﴿قُلِ اللَّهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَن تَشَاء وَتَنزِعُ الْمُلْكَ مِمَّن تَشَاء وَتُعِزُّ مَن تشَاء وَتُذِلُّ مَن تَشَاء بِيَدِكَ الْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَىَ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [ال عمران: ٢٦]. ژباړه: ووايه خدايه: د ملک مالکه ستا چې چا ته خوښه شي حکومت ورکوې او له چا نه چې وغواړې اخلې یې، چاته چې دې خوښه شي عزت ورکوې او څوک چې وغواړې ذلیله کوې یې ښیګنه ستا په واک کې ده بیشکه ته په هر څه قادر یې.

همدارنګه په قرآن کریم کې راغلي: ﴿أَيَبْتَغُونَ عِندَهُمُ الْعِزَّةَ فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا﴾[النساء: ١٣٩]. ژباړه : ایا دا خلک د عزت لاس ته راوړلو لپاره (کافرانو) ته ورځي؟ په داسې حال کې چې هر ډول عزت یوازې د الله لپاره دي.

همدارنګه فرمايي: ﴿وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ [المنافقون: ٨]. ژباړه: حال دا چې د عزت خاوند خو د الله او د هغه د رسول او مومنانو لپاره دی خو دغه منافقان نه پوهیږي.

**د اذلال صفت**

د (إذلال) صفت له «أَذَلَّ يذِلُّ إِذْلَالًا» څخه اخستل شوی د رسوا کولو ذلیل کولو او خوارولو په معنی دی او بله کلمه چې د دې کلمې سره مترادفه ده او د الله په هکله ورڅخه استفاده شوې ده إخذال کلمه ده چې دا هم د رسوا کولو او بې یار او بې یاوره کولو په معنی ده. یعنی هر څوک چې د الله فرمان او

حکمونو ته غوږ و نه نیسي او پاملرنه ورته ونکړي هغه ذلیل او رسوا کوي او بې یار او یاوره یې پرېږدي لکه چې فرمایي:﴿إِنْ يَنْصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ وَإِنْ يَخْذُلْكُمْ فَمَنْ ذَا الَّذِي يَنْصُرُكُمْ مِنْ بَعْدِهِ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾ [ال عمران:١٦٠] ژباړه: که الله مو مرستندوی وي نو هیڅ قوت ورباندې بر لاسی کیدای نه شي او که هغه تاسې پرېږدي نو بیا له هغه وروسته څوک دي چې ستاسې مرسته وکړي شي؟ نو څوک چې رښتینې مؤمنان دي یوازی پر الله توکل وکړي.

یعنی یوازې باید د الله فرمان پیروان وواسو او یوازې هغه خپل مرستندوی وګڼو او یوازې په هغه تکیه وکړو او په هر کار او هر پروګرام کې هغه ته مخه کړو او که چیرې الله زموږ له مرستې لاس واخلي نو څوک به زموږ مرستې ته راودانګي؟

**شپږم لوست**

**سرليک: قبر**

**مخ: ۱۱**

**وخت: يو درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- وپوهيږي چې مرگ حق او ارومرو راتلونکی دی.
- وپوهيږي چې په قبر کې د عذاب يا راحت مسله د مسلمانانو د عقيدې جز دي.
- د قبر او د قبر عذاب په هکله دلايل بيان کړی شي.
- د قبر په عذاب يا راحت عقيده ولري.

**اړينه پوهنه**

### يوه ورځ مرگ راتلونکی دي

انسان له مرگ څخه تښتي اوکله چې ناروغه کيږي د مرگ له ويرې نه فوراً د ځان علاج او تداوي کوي، کوم ځای چې محض د مرگ بوی احساس کوي هلته پښه نه ايږدي، خو مرگ له بلې خوا ورته رسيږي، انسان چې هر څومره هوښيار او چالاکه وي مرگ ورڅخه تيز هوشه دی، په هره اندازه چې ځواکمن او پانگه وال وي د مرگ څخه نشي خلاصيدی. مرگ د چا کور ته د داخليدو لپاره له چا څخه اجازه نه غواړي او په هيچا رحم نه کوي، ضمانت او کفالت هم نه مني نو مرگ حتمي او ضروري راتلونکی دی.

﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَن زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَما الْحَيَاةُ الدُّنْيا إِلاَّ مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾ [ال عمران: ۱۸۵]

**ژباړه: په پای کې هر څوک د مرگ خوند څکونکی دی او تاسې ټول د قیامت په ورځ د خپلو خپلو پوره اجرونو میندونکی یې، بریالی اصلاً هغه څوک دی چې هلته د دوزخ له اوره وژغول شي او جنت ته ننویستل شی، پاتې شوه دا دنیا، دا خو صرف یو غولونکی شی دی.**

**الله بل ځای فرمایي: ﴿أَيْنَمَا تَكُونُواْ يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ﴾** [النساء: ۷۸] **ژباړه: هر چېرې چې یاستئ مرگ به موبیا مومي که څه هم په کلکو پخو کلاو کې هم اوسئ.**

**قبر څه دی؟ قبر له هغه ځای څخه عبارت دی چې مړی هلته خښیږي.**

**د قبر مسایل او احکام**

**۱- قبر باید د احترام او درناوي مورد وگرځی ځکه انسان پکې خښ شوی او انسان د احترام وړ دی. په دې اړه ټول فقها متفق نظر لري چې په قبرونو تیریدل مکروه دی او په حدیث کې راغلي:** ((نهى أن توطأ القبور)) **یعنی د اسلام پیغمبر صلی الله علیه وسلم د قبرونو له پایمالولو څخه منع کړې ده.**

**قبر یا د جنت باغچه او یا د دوزخ کنده ده**

**۲- موږ مسلمانان د قبر په عذاب او یا د قبر په نعمتونو او خوشحالیو عقیده لرو او همدارنگه عقیده لرو چې قبر، یا د دوزخ له کندو څخه یوه کنده او یا د جنت له باغونو څخه یو باغ دی. او په دې هکله ډیر روایتونه راغلي دي لکه:**

**زید بن ثابت روایت کوي چې د الله رسول د بنی نجار په باغ کې په یوه قچره سپور و او موږ ورسره وو ناڅاپه قچره د خپل مسیر څخه ووته او وتښتیده او نږدې وه چې د الله رسول صلی الله علیه وسلم په ځمکه راولیږي هلته څلور، پنځه یا شپږ قبرونه وو د الله رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل :** «مَنْ يَعْرِفُ أَصْحَابَ هَذِهِ الْأَقْبُرِ؟» **یعنی څوک شته چې د دې قبرونو خاوندان وپیژني؟ یوه تن وویل هو پیژنم یې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل دا کسان څه وخت مړه شوي دي. هغه وویل د شرک (په جاهلیت) په حال کې مړه شوي دي.**

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ﴿إنّ هذه الأُمَّةَ تُبْتَلَى في قُبُورِها فلَوْلا أنْ لا تَدَافَنُوا لَدَعَوْتُ الله أن يُسْمِعَكمْ مِنْ عَذابِ القَبْرِ الّذِي أسْمَعُ مِنْه﴾ یعنی یقینا دغه امت په خپلو قبرونو کې تر ارزونې لاندې راځي که چیرې د دې وېره نه وای چې خلک به مړي خښول پرېږدي ما به د الله نه غوښتني وو چې د قبر د عذابونو چیغې کومې چې زه اورم تاسو ته به یې هم واوروي. دغه څخه وروسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم ما ته مخ راوګرځاوه او ویې فرمایل: (تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِن عَذَابِ النّار) یعنی د دوزخ له اور نه الله ته پناه یوسئ. صحابه کرامو وویل: (نَعُوذُ بِاللَّهِ مِن عَذَابِ النَّار). بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ). یعنی د قبر د عذابه الله ته پناه یوسئ صحابه کرامو وویل: (نَعُوذُ بِاللَّهِ مِن عَذَابِ الْقَبْرِ). یعنی د قبر د عذابه الله ته پناه وړو. (مسلم ۲۸٦۷)

## انسان په خپل قبر کې د لاندې پوښتونو سره مخ کیږي

وروسته له دې چې مړی په قبر کې کېښودل شي نو دوه غوسه ناکې او ویرودونکې پرښتي ورته راځي او مړي راکینوي او پوښتنې ورڅخه کوي:

س: (مَنْ رَّبك) یعنی ستا پروردګار څوک دي؟

ج: مسلمان وايي: (رَبِّی اللَّهُ) زما رب الله دي

س: وايي (مَا دِينُك؟) یعنی ستا دین څه دي؟

ج: مسلمان وايي (دِينِي الإِسْلَامُ) یعنی دین مې اسلام دی.

س: وايي (مَا هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُم؟) د دغه شخص په هکله چې تاسو ته رالیږدل شوی دی څه وايي؟

( د رسول الله صلی الله علیه وسلم نوراني ځییره یې مخې ته راځي)

ج: مسلمان مړی وايي هغه د الله استازی (رسول) دی.

**س: وايي (**مَا عَمَلُك به؟**) يعنى په دنيا کې دې څه عمل تر سره کړي دي؟**

**ج: مسلمان وايي: (**قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ وَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ بِهِ**) يعنى د الله کتاب مې ولوست او په هغه مې ايمان راوړي و او د هغه مې تصديق کړي و.**

**هدف دا چې مومن د همداسې پوښتنو سره مخ کيږي. او د مومن په هکله الله فرمايي:** ﴿يُثَبِّتُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱلۡقَوۡلِ ٱلثَّابِتِ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ﴾[إبراهيم: ٢٧]. **ژباړه: الله ايمان والو ته په دنيا او آخرت کې د يوې ثابتې وينا پر بنسټ ثبات په برخه کوي. الله مؤمن ته د صحيح او سم ځواب ورکولو توفيق ورکوي او هغه صحيح ځوابونه ورکوي. خو کافر او منافق انسان په پاسينو پوښتنو کې ناکاميږي او د الله دايمي او تل پاتې عذاب اخته کيږي.**

**اووم لوست**

**سرلیک: حشر**

**مخ: ۱۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- وپوهیږي چې ایمان په حشر د اسلامي عقایدو جز دی.
- دا خبره درک کړي چې انسان د حشر په ډګر کې تر پوښتنو لاندې راځي.
- د قبر او د قبر عذاب په هکله دلایل بیان کړی شي.
- د محشر، حساب او کتاب په هکله معلومات ارائه کړی شي.

**اړینه پوهنه**

حشر په لغت کې د راټولولو او راجمع کېدو په معنا راځي. او په اصطلاح کې د مرګ نه وروسته د خلکو له دوهم ځلې را ژوندي کیدو څخه عبارت دی څو د حشر په میدان کې حساب او کتاب ورسره وشي.

**د قیامت د رامنځته کېدو لومړی پړاو:** کله چې د اول ځل لپاره اسرافیل علیه اسلام په شپیلۍ کې پو کی وکړي نو ټول ژوندي موجودات چې د ځمکې پر مخ دي مري. لکه چې قرآن کریم فرمایي: ﴿وَنُفِخَ فِى الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِى الْأَرْضِ﴾ [الزمر: ۶۸] ژباړه: او په هغه ورځ به شپیلۍ پو کړه شي او هغه ټول چې په آسمانونو او ځمکه کې دي مړه به شي.

او بل ځای فرمایي: ﴿فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ، وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَاحِدَةً، فَيَوْمَئِذٍ وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ، وَانْشَقَّتِ السَّمَاءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَاهِيَةٌ﴾. [الحاقه: ۱۳-۱۶] ژباړه: بیا چې کله یو ځل په شپیلۍ کې پوکی ووهل شي او ځمکه او غرونه په راپورته کولو سره به یو ګوزار میده میده کړی شي، په هغه ورځ

به هغه کیدونکې پېښه رامنځ ته شي په هغه ورځ به آسمان وچوي او د هغه نظم او استحکام به ویجار شي.

**د قیامت دوهم پړاو:** کله چې د دوهم ځل لپاره اسرافیل علیه السلام په شپېلۍ کې پوکی کوي نو ددې په واسطه ټول خلک راژوندي کیږی، له قبرونو څخه راوځي او د محشر په لوري د حساب او کتاب لپاره روانیږی لکه چې الله په قرانکریم کې فرمایي: ﴿ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ﴾ [الزمر: ۶۸]. **ژباړه:** بیا په یوه بله شپېلۍ پوه کړه شي او په ناڅاپي ډول به ټول راپاڅیږي ګوري به. په دې وخت کې خلک حیران او لالهاند پښې لوڅي، او بر بنډ ناسنته (لکه څنګه چې د مور نه زیږدلي وي ) د قبرونو څخه را پورته کیږي او د ډېر شدت او سختۍ له وجې به یو بل ته سره نه ګوري او هر څوک به په ځان مشغول وي او دا هغه ورځ ده چې کفار به وایي﴿يَا وَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَرْقَدِنَا﴾ [یس: ۵۲] **ژباړه** : په وارخطایي سره به وايي اوه دا چا موږ له خپلو قبرونو را پاڅولو؟ او مومن به وايي ﴿هَذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ﴾ [یس: ۵۲] **ژباړه:** دا هغه دی چې رحمان خدای د هغه وعده کړې وه او د پیغمبرانو خبره رښتیا وه.

**د محشر په لور**

وروسته له دې چې د خپلو قبرونو څخه راوځي او د محشر د ډګر په لوري حرکت کوي. الله تعالی د هغه په هکله فرمايي: ﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَنِ وَفْدًا * وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا﴾ [مریم: ۸۵-۸۶].
ژباړه: هغه ورځ راتلونکې ده چې موږ پرهیزګاران د میلمنو په څیر د رحمان حضور ته وړاندې کړو او مجرمان به د تږو ځارویو په شان د دوزخ لوري ته وشړو.

**د محشر سخته او هیبتناکه صحنه**

د محشر صحنه او د عظیم او لوی ذات په وړاندې دریدنه څه ساده او معمولي خبره نه ده بلکې ډېره سخته خبره او حالت دی.

الله پاک د محشر د ورځې د هیبتنا کې صحنې په هکله فرمايي: ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ، وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ * وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ ، لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ﴾ [عبس: ۳۴-۳۷]. **ژباړه:** هغه ورځ چې بنی آدم تبنتي له خپل

وروور او خپلې مور او خپل پلار او خپلې میرمنې او خپلو اولادنو څخه له هغو څخه په هر یوه به دې ورځ کې داسې حالت راشي چې د هغه به له ځانه پرته بل هیچا ته پام نه وي.

**د احادیثو په رڼا کې د محشر د میدان ګرمي**

**لمر به د ډیر سخت شدت او حرارت په حالت کې دوی ته رانږدې کیږي او د بدنونو څخه به یې خولې بهیږي لکه څنګه چې په نبوی حدیث کې راغلي دي:** «يَعْرَقُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِي الْأَرْضِ سَبْعِينَ ذِرَاعًا وَيُلْجِمُهُمْ حَتَّى يَبْلُغَ أذانهُم» [رواه البخاری]

**یعنی د قیامت په ورځ به خلک دومره په خپلو خولو کې غرق وي چې خولې به یې اویا ګزه په ځمکه کې ښکته ځي او تر غوږونو به په خپلو خولو کې غرق وي.**

**د حساب ورکولو پیل:** کله چې دوی څه وخت په ویره او وحشت کې پاتې کیږي نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم د الله تعالی دربار ته رجوع کوي او شفاعت کوي څو دغه پریښانوونکی حالت ته د پای ټکی کیږدي. الله تعالی د ده شفاعت قبلوي او د حساب او کتاب امر ورکوي په دغه وخت کې به هر انسان چې په دنیا کې یې څه عمل کړی هغه به ویني، واړه عملونه وي او که غټ ټول به یې په مخ کې مجسم او ښکاره شي او هیڅ عمل به یې د الله په وړاندې پټ پاتې نشي.

**اتم لوست**

**سرلیک: جنت**

**مخ: ۱۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- وپوهيږي چې جنت حق دی.
- وپوهيږي چې جنت د مؤمنانو لپاره تل پاتې ځای دي
- د جنت د اثبات لپاره دلایل بیان کړی شي .

**اړینه پوهنه**

**مومنان له کافرانو څخه جلا کیږي**

د اسلام پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دې هکله فرمايي: د محشر په میدان کې د الله له طرفه اعلان کیږي: هغو کسانو چې په دنیا کې يې څه شی یا څوک د الله پرته په خدايي منلی، هغوی دې یوې خواته شي نو مشرکان، بت پرستان او هغو کسانو چې د عزيز او مسیح علیها السلام او نورو لپاره عبادت کړی ټول به یو ځای راټول شي او دوزخ ته به روان شي. چا چې د الله تعالی عبادت کړي هغه که نیکو کاره دي او که بد کاره هغوی به بل لوري ته ټول سره یو ځای ودريږي. نو دغه وخت د دوزخ په مخ به یو پل نصب شي او د شفاعت وړکسانو ته به د شفاعت اجازه ورکړی شي کوم کسان چې د پله سره دريږي وايي به یا الله! پیروز يې کړې، یا الله! نجات ورکړې.

**جنت او په هغه کې د الهی نعتمونو پریمانی**

الله تعالی د قرآن کریم په څو ځایونو کې جنت د تل پاتې نعمتونو مرکز او محور راپیژندلی دی او په یوه آیت کې فرمايي: چې په جنت کې د نعمتو تصور د انسان له قدرت څخه لوړ دی او په جنت کې د

جنتیاتو لپاره داسې نعمتونه چمتو شوي دي تر اوسه يې نه د انسان په زړه کې خطور کړی او نه د بشر لپاره د تصور وړ دي. په دې هکله نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: (فِيهَا مَا لاَ عَيْنٌ رَأَتْ وَلاَ أُذُنٌ سَمِعَتْ وَلاَ خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ) یعنی په جنت کې داسې نعمتونه شتون لري چې نه سترګو لیدلي دي، نه غوږو اوریدلي دي او نه یې په بشري زړه کې خطور کړی دی. اوس موږ دلته ځینو نعمتونو ته اشاره کوو:

۱- جنتیانو ته به ګانه ور واچول شي لکه طلایي او د ملغلرو لاس بندونه (بنګړي) لباسونه به یې په جنت کې د وریښمو وي.

۲- دا چې ویالې به یې د شیدو، شرابو او شاتو بهیږي

۳- دا چې د دوی خدمتګارې به حور العین او نوی ځوانان دي- حور العین د جنت ښځې دي سپینې، ښې ځیرې او زړه وړونکې او د لویو او تورو سترګو خاوندانې.

دا هم پاتې نشې چې د جنت شیدې، شراب او شات د دنیا په شان نه وي، ځکه د بشر عقل او علم محدود دی نو ځکه د الله ځنې د جنت خواړه د دنیا له خوړو سره مشابه کړي دي.

۴- بله دا چې ډول ډول میوې به د جنتیانو په اختیار کې کیښودل شي او هغه به پرته له کوم قید او بنده او پرته له ممانعته دوی ته رسیږي.

۵- د جنت د نعمتونو په رأس کې د الله لیدنه ډیر لوی نعمت دی چې جنتیانو ته ور په برخه کیږي او څومره نیکمرغه دی هغه څوک چې د الله لیدنه یې په برخه شي.

### د آیتونو او نبوي احادیثو په رڼا کې د جنت صفتونه

الله تعالی لکه څنګه چې د جنتیانو او مؤمنانو لپاره پریمانه نعمتونه چمتو کړي همدارنګه یې د جنتیانو لپاره څه صفتونه او ځانګړتیاوې هم بیان کړي دی لکه:

## د جنت پراخي د آسمانونو او ځمکو د پراخۍ به کچه دی

الله تعالی فرمایلي دي: ﴿سَابِقُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ [الحدید: ۲۱]

ژباړه: وځغلئ او یو له بل نه د وړاندې کیدو هڅه وکړئ د خپل رب د مغفرت او هغه د جنت خواته چې د هغه پراختیا د آسمانونو او ځمکې په څیر ده.

## جنت د مؤمنانو لپاره د تل پاتې ځای په توګه

الله فرمایی: :﴿خَالِدِينَ فِيهَا لا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلاً﴾ [الکهف: ۱۰۸]. ژباړه: هغوی به پکښې د تل لپاره اوسیږي او هیڅکله به له هغه ځایه وتل او چیرته تلل د هغو زړه و نه غواړي.

په قرآنکریم کې د جنت لپاره څه نور صفتونه او ځانګړتیاوې بیان شوي دي لکه:

دارالسلام: د سلامتۍ کور.

دارالرضاء: د خوښۍ او رضایت کور.

دارالمقام: د اقامت او ژوند کولو ځای.

فوز عظیم: د انسان لپاره لوی موفقیت او بر لاسی.

**نهم لوست**

**سرلیک: دوزخ**

**مخ: ۱۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- وپوهیږي چې ایمان په دوزخ فرض دی.
- درک کړي چې کفار به تل په دوزخ کې وي او گنهگار مؤمنان موقتاً.
- د دوزخ په اړه معلومات ورکړی شي.

**اړینه پوهنه**

**دوزخ څه شی دي؟**

دوزخ د هغه ځای نوم دی چې الله تعالی د کافرانو، منافقانو، او هغو خلکو لپاره جوړ کړی چې د الله تعالی له فرمانونو څخه مخ اړ وي او د پیغمبرانو او اصلاح کوونکو د دعوت په وړاندې سنگر نیسي، څو دوی هلته د خپلو بدو اعمالو په سزا ورسیږي.

**دوزخیان به رسوا او ذلیله وي**

څوک چې د دوزخ ور وگرځي په حقیقت کې د ډېرې خطرناکې رسوالي سره مخ شو لکه څنگه چې الله تعالی په دې هکله فرمايي: ﴿رَبَّنَا إِنَّكَ مَن تُدۡخِلِ ٱلنَّارَ فَقَدۡ أَخۡزَيۡتَهُۥۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ أَنصَارٖ﴾ **ژباړه**: زموږ ربه ! تا چې څوک په دوزخ کې واچاوه هغه دې په حقیقت کې په ستره خواری او رسوایی کې وغورځوه او بیا د دغه راز ظالمانو به هیڅوک مرستندوی نه وي.

**الله بل ځای کې فرمايي:** ﴿أَلَم يَعلَمُواْ أَنَّهُ مَن يُحَادِدِ ٱللَّه وَرَسُولَهُ فَأَنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَلِدا فِيهَا ذَلِكَ ٱلخُزيُٱلعَظِيمُ﴾ [التوبه: ۶۳].
**ژباړه: آيا دوی ته معلومات نشته چې څوک له الله او پيغمبر سره مقابله کوي د هغه لپاره د دوزخ اور دی چې تل به پکې اوسيږي دا ډېره لويه رسوايي ده.**

**دوزخ او د هغه پراختيا**

**د دوزخ پراختيا د تصورنه لوړه ده او څنډې يې يو له بله ډېرې لرې، دلايل هم په دې مدعی دلالت کوي لکه هغه کسان چې دوزخ ننوځي شمير يې زيات دی.**

**۱- کوم کسان چې دوزخ ته ځي بدنونه به يې ډېر لوی شي ان تردې چې يو غاښ به يې د احد د غره په شان لوی وي او د دواړو متو ترمنځ واټن به يې د دريو ورځو د سفر په کچه وي خو سره له دې هم په دوزخ کې ځائيږي ، لکه چې الله فرمايي:** ﴿يَومَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ ٱمتَلَأتِ وَتَقُولُ هَل مِن مَّزِيد﴾ [ق: ۳۰]. **ژباړه: هغه ورځ چې جهنم ته ووايو: آيا ډک شوې؟ او هغه بل وايي: آيا څه نور شته؟**

**۲- دا چې که چيرې تيږه په هغه کې واچول شي نو څو چې د ځمکې بيخ ته رسيږي ډېر زيات وخت به پرې تير شي. د ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې فرمايي: د پيغمبر صلی الله عليه وسلم سره وو چې نا څاپه رسول الله صلی الله عليه وسلم د څه شي د لويدلو غږ واوريد نو ويې ويل فرمايل:** (أتدرونَ ما هذا؟) **يعنی آيا پوهيږي چې دا غږ د څه شي دی؟ صحابه وو وويل. الله او رسول يې بهتر پوهيږي. رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:** (هَذَا حَجَرٌ رُمِىَ بِهِ فِى النَّارِ مُنْذُ سَبْعِينَ خَرِيفًا فَهُوَ يَهْوِى فِى النَّارِ الآنَ حَتَّى انْتَهَى إِلَى قَعْرِهَا) **يعنی دا يوه تيږه ده چې اويا کاله مخکې دوزخ ته اچول شوي ده او لا تر اوسه يې بيخ ته نده رسيدلې.**

**۳- د قيامت په ورځ به دوزخ او يا زره قيزې ولري: د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په يوه حديث کې راغلي چې د قيامت په ورځ به دوزخ په داسې حال کې راوړل شي چې اويا زره قيزې به لري او ملايکې به يې راکش کوي لکه څنګه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:** (يُؤْتَى بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لَهَا سَبْعُونَ أَلْفَ زِمَامٍ مَعَ كُلِّ زِمَامٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَجُرُّونَهَا) **يعنی په هغه ورځ به دوزخ راوړل شي په داسې حال کې چې اويا زره قيزې (لګام) به لري او د هرې قيزې سره به اويا زره ملايکې وي چې هغه به راکش کوي.**

## په قرآن کريم کې دوزخ نومونه

الله تعالی په قرآن کريم کې د دوزخ لپاره څه نومونه بيان کړي چې مورِ ځنوته يې اشاره کوو:

- الهَاوِيَه: ژور ځای
- السَعِير: بل شوی اور
- الجَحِيم: لوی اور
- سَقَر: په دوزخ کې ډېر گرم ځای
- الحُطَمَةُ: ټکوونکی
- لَظَی: بل شوی اور
- جَهُنّم: ډېر گرم ځای

**لسم لوست**

**سرلیک: اوبه**

**مخ: ۹**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توگه ولوستلای شي.
- د اوبو ډولونه وپیژني.
- د اوبو په ارزښت پوه شي.
- د اوبو د کارولو په وخت کې اسراف ونه کړي.

**اړینه پوهنه**

**د اوبو ارزښت**

اوبه د ژوندیو موجوداتو لپاره اړینه ماده ده. همدارنگه اوبه د محیط زیست د مهمو سر چینو څخه گڼل کیږي چې د ټولو ژوندیو موجوداتو اعم د انسانانو، حیواناتو او نباتاتو ژوند او سلامتی اوبو پورې تړلی دی. په قرآن کریم، حدیث او فقه او په ټولنیز ډول په اسلامي متونو کې د اوبو د ارزښت په اړه یادونه شوې چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

الله (ج) فرمایي: ﴿وَجَعَلنَا مِنَ المَاءِ كُلَّ شَيءٍ حَيّ﴾ [الانبیاء:۳۰] ژباړه: او له اوبو نه موهر ژوندی شی پیدا کړ.

او په بل ځای کې فرمایي: ﴿وَاللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ مِن مَّاءٍ﴾ [النور:۴۵]. ژباړه: او الله هر ساکښ له اوبو پیدا کړ.

او همدارنگه په بل ځای کې الله پاک فرمایي: ﴿ وَهُوَ الذی خَلَقَ من الماء بَشَرا﴾ [فرقان:۵۴]. ژباړه: الله هغه ذات دی چې انسان یې له اوبو پیدا کړ.

**د اسراف څخه ځان ساتنه**

اوبه د الله پاک لوی نعمت دی چې د بشر د هوساینې سرچینه ده. الله پاک د ټولو ژوندیو موجوداتو ژوند اوبو پورې تړلای دی، نو باید د الله تعالی د دې ستر نعمت شکر وباسو او د اوبو د استعمال په وخت کې اسراف ونه کړو. الله جل جلاله هم مونږ د اسراف څخه منع کړي یو لکه څرنګه چې په دې مبارک آیت کې فرمايي: ﴿يا بَنى آدَم خُذُوا زِينَتَكُم عِندَ كُلِّ مَسجِدٍ وَكُلُوا وَاشرَبُوا وَ لَا تُسرِفُوا إِنَّه لَا يحِبُّ الْمُسرِفين﴾[الاعراف: ۳۱]

ژباړه: ای د بني آدم اولادې! د هر عبادت په وخت کې په خپله ښکلا، سینګار ووسئ او وخورئ او وڅښئ خو اسراف مه کوي بې شکه الله اسراف کوونکي نه خوښوي. ﴿إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخوان الشياطين﴾[اسراء:۲۷]. ژباره: بې شکه چې اسراف کوونکي د شيطانانو وررونه دي.

لکه څرنګه چې پوهيږو طهارت د عبادتونو بنسټ دی، نو لمونځ نه صحيح کيږي خو له طهارت سره او طهارت بې له اوبو څخه ناشوني دی. الله پاک فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ﴾ [البقرة: ۲۲۲]. ژباړه: بې شکه الله پاک توبه کوونکي خوښوي او ځان پاک ساتونکي خوښوي. همدارنګه په حديث شريف کې راغلي دي: (مفتاح الجنة الصلوة و مفتاح الصلوة الطهور) د جنت کلی لمونځ دی او د لمانځه کلی طهارت دی.

**د اوبو ډولونه**

اوبه ځانته ډولونه او اوصاف لري چې په درسي کتاب کې ترې یادونه شوې ده چې عبارت دی له: پاکوونکي اوبه، مستعملې اوبه او نا پاکې اوبه .

**۱- پاک کوونکې اوبه:** هغه اوبه چې ذاتاً پاکې وي او همدارنګه پاکوونکې هم وي او د حدث (اکبر او اصغر) او نجاست لرې کوونکې وي طهارت او پاکي دې ډول اوبو سره جواز لري. لکه: د باران اوبه، د څاه اوبه، د ویالو اوبه، د سیند اوبه.

- طهارت د هغو اوبو سره چې پاک شئ ورسره مخلوط شوی وي او پر هغو غالبې (زیاتې) وي او د اوبو د طبیعت څخه وتلې وي، جواز نه لري. لکه: د ګلابو اوبه، ښوروا، د زردکو اوبه او داسې نور.
- طهارت په هغو اوبو چې پاک شئ ورسره ګډ شوی وي او د اوبو د صفتونو څخه یې یوه صفت ته بدلون ورکړي وي، جواز لري. لکه:
- هغه اوبه چې اشنان ورسره ګد شوی وي.
- هغه اوبه چې صابون ورسره مخلوط شوی وي.
- هغه اوبه چې زعفران ورسره مخلوط شوی وي.

۲- **مستعملې اوبه:** هغو اوبو ته ویل کیږي چې د حدث (اودس او غسل) د لرې کولو لپاره استعمال شوې وي. دا ډول اوبه پاکې دي خو پاک کوونکې نه دي په دې معنی چې په دې ډول اوبو د حدث رفع کول ناشونې دی نو طهارت په دې ډول اوبو جائز نه دی.

### د لوست لنډیز

اوبه د الله پاک ستر او لوی نعمت دی د پاکې وسیله ده ژوند بې له اوبو نا شونې دی. اوبه دری ډوله دي: پاکوونکې اوبه، مستعملې اوبه او نا پاکې اوبه.

**یوولسم لوست**

**سرلیک: اوبه (۲)**

**مخ: ۹**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توگه ولوستلای شي.
- د پاکو او ناپاکو اوبو تر منځ توپیر وپیژني.
- د اوبو په پاکو ساتلو ته لیوال شي او نورو ته هم دا موضوع توصیه کړي.

**اړینه پوهه**

**۳– نا پاکې اوبه:** هغه اوبه دي چې نجاست ورته رسیدلای وي، خواه د نجاست اثر په اوبو کې ښکاره وي، هغه اوبه نجسې دي که هغه اوبه زیاتې وي یا لږې.
**زیاتې اوبه:** هغو ډنډو اوبو ته ویل کیږي چې د اوبو د یوه لوري په ښوررولو سره بل لوری حرکت ونه کړي. دا ډولو اوبه د روانو اوبو حکم لري. د دې ډنډ اندازه لس گزه په لس گزه کې ده او د عمق اندازه یې داسې دی که چیرې په لپه کې اوبه ترې واخستل شي نو ځمکه ښکاره نه شي.

**لږی اوبه** : هغه اوبه چې د پورتني حد څخه لږې وي.

**روانې اوبه** : هغه اوبه چې استعمال یې بیاځلې نه کارول کیږي، که چیرې دې ډول اوبو سره نجاست گډ شي اودس په هغو اوبو جائز دی په دې شرط چې د نجاست اثر په کې ښکاره نه شي.

**د ناپاکو اوبو حکم:** طهارت په دې ډول اوبو سره نه حاصلیږي، آن تردې چې که له بل شي سره هم گډ شي نو هغه شئ هم نجسوي.

**مسائل**

- که چیرې د ډیرو دریدلو له امله اوبه رنګ، بوی او خوند یې تغییر وکړي هغه اوبه پاکې دي او طهارت پرې جواز لري.
- هغه اوبه چې د یخ او یا د ږلۍ د ویلی کیدو له امله لاس ته راغلې وي، اودس پرې جواز لري.
- هغه اوبه چې د ونو او یا هم د میوو څخه لاس راغلې وي، طهارت پرې جواز نه لري، توپیر نه کوي که هغه اوبه د فشار له کبله او یا هم بې له فشاره لاس ته راغلې وي.
- او همدارنګه هغه اوبه چې د پخولو له امله طبع (رقت، سیالت...) یې له منځه تللې وي. طهارت پرې جواز نه لري، لکه: د ښورروا اوبه او د شربتونو ډولونه.

**د لوست لنډیز**

نا پاکې هغه اوبه دی چې نجاست ورته رسیدلای وي او دا اوبه هر پاک شئ نا پاکوي، که دا اوبه زیاتې وی یا لږې، طهارت پرې جواز نه لري.

زیاتې او روانې اوبه هغه وخت نجسیږي چې په هغو کې د نجاست د لویدو له کبله رنګ، خوند او بوی یې تغییر وکړي.

**دولسم لوست**

**سرلیک: د اوداسه فرائض**

**مخ: ۲۳**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- پوه شي چې اودس د لمانځه شرط دی.
- د اوداسه شرایط وپیژني او نورو ته انتقال کړي.
- دا عقیده پیدا کړي چې د مسلمانان صغیره گناهونه د اودس په کولو سره له منځه ځي.

**اړینه پوهه**

**اودس:** اودس د اسلام په سپیڅلي دین کې عبادت گڼل کیږي او عبارت دی له: د لاسونو مینځل، د مخ مینځل د سر مسحه او د پښو مینځل د ځانگړو شرایطو سره چې د مسلمان د صلاح او کامیابی لامل گرځي. لکه څرنگه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د اودسه د برکت او عظمت په اړه فرمایي: (**که څوک اودس د هغه دستور العمل سره سم چې ما د اوداسه په اړه پرېښې، په سمه توگه تر سره کړي او وروسته د شهادت کلمه (اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمداً عبده و رسول)** زه گواهي ورکوم چې هیڅ معبود نشته مگر الله، او گواهي ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د هغه بنده او استازي دي) ولولي، دې کس ته د جنت اته دروازی پرانستل کیږي، هغه وخت د هرې دروازې څخه چې وغواړي جنت ته ننوځي. [صحیح المسلم]

**د اوداسه د فرضیت دلیل**

اودس د لمانځه اړین شرط دی بې له اوداسه لمونځ کول ناشونې دی په قرآن پاک کې نه دا چې د اوداسه په اړه یادونه شوې بل په تفصیل سره ذکر شوې چې د بدن کوم غړي پریمینځل شي چې په دې

آیت شریف کې ورته اشاره کیږي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾[المائدة: ٦] ژباړه: ای مؤمنانو! کله چې تاسو د لمانځه لپاره پاڅیدئ؛ نو باید چې خپل مخونه او لاسونه تر څنګلو پورې ووینځئ، پر سرونو باید مسح وکړئ او پښې تر پیکیو پورې ووینځئ.

په پورتني مبارک آیت کې د اوداسه فرایض په صراحت سره بیان شوي چې په اوداسه کې څلور فرضه دي په اصل کې د دې څلور شیانو مجموعې ته اودس ویل کیږي. او که چیرې د هغو څلورو شیانو څخه یو یې هم د یاده ووځې او یا هم پریښودل شي او یا هم د ویښتانو د سر په اندازه وچوالی ښکاره شي نو اودس سم نه دي.

**د اوداسه فضیلت:** د اوداسه په کولو سره د مسلمان بدن پاک او صغیره ګناهونه یې ښښل کیږي. لکه څرنګه چې د عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه څخه روایت شوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلی: (من توضأ فأحسن الوضوء خرجت خطاياه من جسده حتى يخرج من تحت أظفاره) [رواه مسلم] .

ژباړه: هر څوک چې اودس وکړي او په اوداسه کې غور او دقت وکړي، ګناهونه یې د بدن څخه وځي آن تردې چې د نوکانو (اظفار) د لاندې څخه هم ګناهونه وځي.

**د لوست لنډیز**

اودس د لمانځه شرط دی او مونږ د ګناهونو او نا پاکیو څخه پاکوي. اودس څلور فرضونه لري:

- د مخ پریمینځل د تندي نه ترزنې پورې او د یوه غوږ د نرمیو څخه د بل غوږ د نرمیو پورې
- د دواړو لاسونو پریمینځل تر لیچو پورې.
- (د سر څلورمه برخه) مسح کول،
- د دواړو پښو پریمینځل تر بجلکونو پورې د بجلکونو په شمول سره.

**دیارلسم لوست**

**سرلیک: د اوداسه سنتونه**

**مخ: ۲۵**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستلای شي.
- د اوداسه سنتونه وپیژني.
- د اوداسه سنتونه نورو ته هم زده کړي.

**اړینه پوهه**

**د پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره د دوستۍ موخه**

د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مینه او دوستي د لويو طاعتونو او عباداتونو څخه ګڼل کیږي. هغه صلی الله علیه وسلم د آدم علیه اسلام د اولادوو سید او سردار، د جهانیانو امام، د سمې لارې لارښود او د الله پاک رالیږل شوی استاذی دی چې الله پاک پر خپلو بندګانو د محمد صلی الله علیه وسلم طاعت مینه او احترام واجب کړی دی او هغه وخت مونږ ویلای شو، چې د خپل پیغمبر سره مینه لرو کله چې د هغه صلی الله علیه وسلم پر سنتونو عمل وکړو او د لارې سره یې سم ژوند وکړو. الله پاک فرمایي: ﴿قُل إن كُنتُم تُحِبُّونَ اللهَ فاتَّبِعُونِى يحبِبكُمُ اللهُ وَ يغفِرلَكُم ذُنُوبكَم وَاللهُ غَفُورٌ رَحيمٌ﴾. [آل عمران: ۳۱] ژباړه: ای پیغمبره، خلکو ته ووایه چې: (که تاسو په رښتیا د الله سره مینه لرئ نو زما د پیروۍ لاره غوره کړئ، الله به له تاسو سره مینه وکړي او ستاسو خطا وې به درویښي هغه ډیر ښه ښښونکی او د رحمت څښتن دي).

اودس چې د الله پاک او د رسول صلی الله علیه وسلم د طاعتونه څخه دی باید په هغه بڼه چې الله جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم امر کړي، تر سره شي، په حدیث شریف کې راغلي: (عَنْ حُمْرَانَ مَوْلَى

عُثْمَانَ قَالَ تَوَضَّأَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ يوْمًا وُضُوءًا حَسَنًا ثُمَّ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ هَكَذَا ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ لَا يَنْهَزُهُ إِلَّا الصَّلَاةُ غُفِرَ لَهُ مَا خَلَا مِنْ ذَنْبِه) [رواه مسلم]

**ژباړه: د عثمان له غلام حمران څخه روايت دي چې عثمان بن عفان يوه ورځ اودس په احسنه وجه تر سره کړ او وروسته يې وفرمايل: ومې ليدل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس په احسنه بڼه تر سره کو او ويې وويل : څوک چې اودس په دې بڼه تر سره کړي او وروسته د لمانځه لپاره د جومات خواته ووځي، الله پاک ټولې ګناهونه يې ببښي. نو اودس بايد د پيغمبر صلى الله عليه وسلم د لارښونې سره سم تر سره کړو او هغه څه چې په اوداسه کې بنست دي بايد پاملرنه ورته وکړو، که څه هم د هغو د نه تر سره کولو سره اودس سم دي، خو قصداً او يا هم څو څو وارې پريښودل يې هم ګناه ته نږدې عمل دي.**

**د اوداسه سنتونه په لاندې ډول ذکر کيږي:**

- **د الله پاک د خوشحالۍ او د آخرت د اجر تر لاسه کولو لپاره نيت کول.**
- **د اوداسه پيل به (بسم الله الرحمن الرحيم) سره څرنګه چې د اسلام ستر پيغمبر صلى الله عليه وسلم هم په دې اړه فرمايي:** (التسمية مفتاح الوضوء و مفتاح کل شيءٍ). **ژباړه: بسم الله د اوداسه کلي او د هر شي کلي ده.**
- **د دواړو لاسونو مينځل تر بندونو پورې.**
- **د غاښونو پاکول پر مسواک، که چيرې مسواک نه وي نو کولای شئ د شهادت پر ګوته خپل غاښونه پاک کړئ.**
- **درې ځلې اوبه مضمضه کول.**
- **درې ځلې په پوزه کې اوبه اچول (استنشاق).**
- **د ږيرې خلال.**
- **د لاسونو او پښو د ګوتو تر منځ خلال.**
- **د ټول سر مسح.**
- **د دواړو غوږونو مسح. د غوږونو د مسحې لپاره اړتيا نشته چې لاسونه بيا لانده شي خو که چيرې د خولۍ، دستار، دستمال او يا هم د نورو شيانو سره تماس وکړي او لاسونه وچ شي، نو د لاسونو لندول اړين دي.**

- د غړو په مينځلو کې ترتيب رعايت شي، په داسې ډول چې لومړی د مخ مينځل، وروسته د لاسونو بيا د سر مسح او بيا د پښو مينځل دي.
- د اوداسه د پای څخه وروسته د مسنونه دعا ګانو لوستل لکه : (اللهم إنی اسألک تمام الوضو و تمام الصلوة و تمام رضوانک)[1]

يا ( اللهم اجعلنی من التوابين و اجعلنی من المتطهرين)[2] او يا هم د (انا انزلنا فی ليلة القدر) تر آخره لوستل .

د اوداسه څخه وروسته غوره ده چې دوه رکعته لمونځ اداء شي چې دې لمانځه ته (تحية الوضوء) ويل کيږي او زيات ثواب لري.

## د لوست لنډيز

اودس بايد د پيغمبر ﷺ د لارښوني سره سم ترسره شي چې د اوداسه ځينې سنتونه لاندې ذکر کيږي:

- نيت کول
- د اوداسه پيل په بسم الله الرحمن الرحيم سره
- مضمضه
- استنشاق
- د هر غړي درى ځلي مينځل

[1] بغية الباحث عن زوائد مسند الحارث جزء اول– صفحه ٥٢٦

[2] سنن الكبرى للبيهقى جزء اول– صفحه ٧٨

**څوارلسم، پنځلسم او شپاړسم لوست**

**سرلیک: آذان – د آذان معنی**

**مخ: ۲۷– ۳۲**

**وخت: درې درسي ساعتونه ( ۱۳۵ دقيقې )**

**موخې– زده کوونکي بايد:**

- د آذان د کلماتو د معنی سره آشنا شي.
- د آذان په اهميت او آدابو ځانونه پوه کړي.
- د آذان اوريدلو او اجابت ته نوره هم ليوالتيا پيدا کړي.

**اړينه پوهه**

**د آذان معنی:** آذان په لغت کې اعلام خبر ورکول او خبرول دی او په شريعت کې ځانګړي کلمات او الفاظ دي چې د لمانځه د وخت د رامنځته کيدو څخه وروسته د جماعت د لمانځه د اداء کولو په موخه خلکو ته خبر ورکول کيږي.

**د آذان فضيلت:** آذان د اسلام په سپيڅلي دين کې ډير ارزښت لري او په متعددو احاديثو کې د آذان د فضيلت په اړه يادونه شوې ده. څرنګه چې په دې حديث شريف کې راغلي دي: ( عن معاويةرضي الله عنه قال: سمعت النبیﷺ يقول المؤذنون اطول الناس اعناقاً يوم القيامة) [صحيح مسلم] ژباړه: مؤذنين به د قيامت په ورځ د جګو او لوړو غاړو سره راښکاره شي د ځانګړي مقام او شأن څښتنان به وي. په بل ځای کې فرمائي: (پر هغه ځای چې آذان کيږي د الله پاک رحمت پرې نازليږي او هغه ځای د عذاب او آفاتو څخه ساتل کيږي)[1].

---

[1]- طبراني

لومړنی مؤذن حضرت بلال‌ﷺ وه. ستر پیغمبر نبی کریمﷺ د بلال‌ﷺ په اړه فرمايي: (بلال په اسلام کې د مخکښو څخه دی)[1].

**د آذان حکم:** آذان د پنځو لمونځونو او د جمعې د لمانځه لپاره مؤکد سنت دی او همدا رنګه د فوتي لومنځونو لپاره آذان جائز دی.

**د آذان آداب**

– مؤذن باید نر وي، د ښځې آذان صحیح نه دی، او که چیرې ښځې آذان وکړ نو آذان باید إعاده شي.

– مؤذن باید داسې څوک وي چې د شریعي مسائلو څخه واقف وي، نیک او پرهیزګاره وي.

– مؤذن باید عاقل وي د لیوني لمونځ مکروه دی همدا رنګه د ماشوم آذان چې د پاکی او تمیز سن ته نه وي رسیدلای مکروه دی.

– آذان باید لوړ ځای کې مخ په قبلې تر سره شي.

– آذان باید په دریدو تر سره شي په ناستې آذان مکروه دی.

– د آذان ورکولو په وخت کې د غوږو په سوریو کې د شهادت د ګوتو ایښودل مستحب ده.

– د آذان د الفاظو د ویلو په وخت کې تأمل کول سنت دی. ځکه که چیرې د آذان د جملو ترمنځ واټن مراعت نشي نو اوریدونکی نشي کولای د آذان ځواب ووايي.

– په آذان کې د ( حیَّ علی الصلوة ) ویلو په وخت کې د مخ ګرځول ښي خواته او د (حیَّ علی الفلاح ) ویلو په وخت کې کیڼ خواته سنت دی: خو باید پاملرنه وشي چې سینه او پښې مخ په قبلې وي.

---

[1] ـ ابن سعد، طبقات الکبری، ج ۳ـ ص ۲۳۲

**د آذان اجابت:** هر مسلمان چې د آذان غږ اوري نو د آذان اجابت پرې واجبیږي. یعنی هر هغه الفاظ چې د مؤذن څخه اوري باید تکرار یې کړي خو یواځې د (**حیَّ علی الصلوة**) او (**حیَّ علی الفلاح**) ویلو په وخت کې (**لاحول ولا قوة إلا بالله**) وویل شي. د نبی کریمﷺ څخه ارشاد دی چې فرمایئ: کله چې مؤذن (**الله اکبر الله اکبر**) وویل تاسو به په ځواب کې (**الله اکبر الله اکبر**) ووائي. کله چې مؤذن (**أشهد أن لا إله إلا الله**) وویل تاسو به هم (**اشهد أن لا إله إلا الله**) ووایئ. په همدې ترتیب سره کله چې مؤذن (**اشهد ان محمد رسول الله**) وویل نو تاسو (**أشهد انَّ محمد رسول الله**) وایئ او کله چې مؤذن (**حیَّ علی الصلاة**) وویل نو تاسو به په ځواب کې (**لاحول ولا قوة إلا بالله**) ووایئ. نو کله چې مؤذن (**حیَّ علی الفلاح**) وویل نو تاسو به ( لاحول ولا قوة إلا بالله ) ووایي. او د (**اکبر الله اکبر لا إله إلا الله**) د اوریدلو سره تاسو به هم همدا الفاظ تکراروی او که څوک د آذان په ځواب کې پورتني کلمات د زړه د حضور سره تکرارکړي نو جنت ته داخلیږي [ رواه مسلم ].

**د لوست لنډیز**

آذان د هر لمانځه د وخت د داخلیدو څخه وروسته د جماعت د لمانځه د اداء کولو په موخه ترسره کیږي. آذان ورکوونکي ته مؤذن او لومړنی مؤذن حضرت بلالؓ وو. آذان د پنځو وختو لمونځونو او د جمعې د لمانځه لپاره مؤکد سنت دی.

**اولسم لوست**

**سرلیک: اقامت**

**مخ: ۳۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستل شي.
- اقامت او د هغه حکم وپیژني.
- د اقامت او آذان تر منځ توپیر وکولای شي.

**اړینه پوهه**

**اقامت:** اقامت د دریدلو په معنی دی، او په اصطلاح کې د آذان کلمات او الفاظ چې د جماعت د لمانځه په پیل کې د جماعت د لمانځه د پیل د خبرولو په موخه ویل کیږي.

**د اقامت الفاظ:** د اقامت الفاظ چې په درسي کتاب کې ذکر شوي دي، د آذان د الفاظو په شان دی په دې توپیر سره چې د (**حیّ علی الصلاة**) ویلو په وخت کې (**قد قامت الصلاة**) ویل کیږي.

**د اقامت حکم:** دفرض د لمانځه د ویلو څخه مخکې، د اقامت ویل سنت دی.

**د اقامت ویل:** اقامت هم د آذان په شان دی په دې توپیر سره:

۱– اقامت د صف په منځ کې ویل کیږي.

۲– اقامت د آذان په پرتله لږ آهسته ویل کیږي.

۳– د اقامت ویلو په وخت کې ګوتې په غوږونو کې نه ایښودل کیږي.

۴– په اقامت کې د (**حيَّ على الصلاة**) ویلو په وخت کې مخ ښي یا کیڼ خواته نه ګرځول کیږي.

۵– په اقامت کې د (**حيَّ على الفلاح**) د ویلو څخه وروسته دووځلې (**قد قامت الصلوة**) ویل کیږي.

٦– اقامت په سرعت ویل کیږي خو آذان په آرامۍ سره.

۷– اقامت ویل د جماعت د فرض لمونځونو لپاره که ادائي وي یا قضائي، سنت دی.

**اتلسم او نولسم لوست**

**سرليک: د آذان دعا – د آذان د دعا معنی**

**مخ: ۳۵ – ۳۸**

**وخت: دوه درسي ساعتونه ( ۹۰ دقيقې )**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- د آذان د دعاء او د آذان د دعاء معنی سره آشنا شي.
- د آذان د اوريدلو څخه وروسته د آذان د دعاء ويلو ته ليواله شي.

**اړينه پوهه**

**د آذان څخه وروسته د دعاء فضليت**

**د آذان د اوريدلو او اجابت وروسته د آذان دعا هم بايد وويل شي، چې په درسي کتاب کې ترې يادونه شوې ده. د حضرت جابر‌رضي الله عنه څخه روايت دی چې حضرت محمدﷺ فرمايلي دي: (څوک چې د آذان د اوريدلو څخه وروسته لاندې دعاء ولولي زما د شفاعت مستحق به شي)**

((اللهم رب هذه الدعوة التامة والصلاة القائمة آت محمدا الوسيلة والفضيلة وابعثه المقاما محمود الذى وعدته)) [رواه البخارى]. **ژباړه: الهی! ای د کامل دعوت مالکه لمونځ و دريده (قائم شو) محمدﷺ ته (وسيلة) او ( فضيلت) ورکړه او په هغه محمود مقام چې تا ورسره وعده کړې ده فائز وګرځوه.**

**– د ((دعوة التامة)) څخه مراد همدا دعوت ده چې هره ورځ پنځه ځلې د هر جومات څخه اوچت کيږی، او د قيامت تر ورځې به اوچتيږي.**

– د ((الوسیلة)) څخه مراد الله پاک ته قریب مقام دی، چې په جنت کې یواځې محمدﷺ ته ورپه برخه کیږي. لکه څرنګه چې نبی کریمﷺ په دې اړه فرمایي:((هرکله چې د تاسو څخه څوک آذان واوري، او د مؤذن څخه وروسته تکرار يې کړي، پر ما درود ووایي، د الله پاک څخه وسیله وغواړي، چې وسیله په جنت کې د الله پاک د ځانګړي بنده لپاره خاص مقام او منزلت دی او زه هیله لرم چې هغه کس زه ووسم او هر څوک چې په خپله دعا کې (الوسیلة) وغواړي د هغه شفاعت پر ما واجب دی.

– ((والفضیلة)) هم الله پاک ته قریب ځانګړی مقام دی چې د قیامت په ورځ ستر پیغمبرﷺ ته ور په نصیب کیږي.

– ((المقام المحمود))هغه مقام دی چې اللهﷻ په خپل کتاب کې د اسلام ستر پیغمبرﷺ ته وعده فرمایلې ده، لکه څرنګه چې په دې مبارک آیت کې فرمایي: ﴿عَسَى أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا﴾ [بنی اسرائیل: ٧٩]

ژباړه: ژر دی چې رب دې په یو ستایلي (محمود) مقام کې ودروي.

**شلم لوست**

**سرلیک: تکبیر تحریمه**

**مخ: ۳۹**

**وخت: یو درسي ساعت ( ۴۵ دقیقې)**

**موخې – زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- تکبیر تحریمه او د هغې حکم وپېژني.
- پوه شي چې تکبیر تحریمه څه وخت ویل کیږي.

**اړینه پوهه**

**د لمانځه ارکان:** ارکان د (رکن) جمع ده او رکن هغه شئ چې د یوه شي په حقیقت کې داخل وي او د هغه لزوم په قطعي دلیل سره ثابت وي او په هغه کې د شک ځای نه وي. لمونځ د اسلام سپیڅلي دین د رکننونو څخه دی چې الهي فریضې د ترسره کولو لپاره په متعددو آیتونو او حدیثونو کې پرې تأکید شوی دی. لکه څرنګه چې نبی کریمﷺ فرمایلي دي: (لمونځ د دین ستنه ده او هر څوک چې دغه ستنه ودروي ګواکې دین یې درولای دی او هر څوک چې ترک یې کړي ګواکې دین یې له منځه وړی دی). نو پر دې اساس لازمه ده چې ددې فریضې د اداء کولو لپاره زیاته پاملرنه وکړو.

د لمانځه د ارکانو څخه مراد: هغه څه چې د هغه اداء او رعایت په لمانځه کې فرض دی، د لمانځه ارکان ورته ویل کیږي. نو لمونځ اوه (۷) رکنه لري: تکبیر تحریمه، قیام (دریدل)، قرائت، رکوع، سجده آخره قعده او په اختیاري فعل سره د لمونځ پای ته رسول دي. که چیرې یو مسلمان په لمانځه کې د لمانځه د ارکانو څخه یو رکن پر ځای نه کړي، عمداً وي یا خطاءً لمونځ یې باطل دی.

**تکبير تحريمه:** تکبير د لوی شميرلو په معنی دی او د الله اکبر ويل دي. دې تکبير ته افتتاحيه تکبير هم ويل کيږي ځکه ددې تکبير په ويلو سره لمونځ پيل کيږي.

– د لمانځه په پيل کې د (الله اکبر) يا (الله اعظم) يا (الله اعلی) او يا نور کلمات چې د الله ﷻ لويوالی او عظمت اظهار کړي او نور مفاهيم لکه دعاء او استغفار ونلري، تکبير تحريمه ويل کيږي.

**د تکبير تحريمه وجه تسميه:** ددې تکبير په ويلو سره ټول هغه کارونه چې د لمانځه څخه بهر حلال دي لکه: په لاره تلل، خوړل، څښل، خبرې کول او داسې نور حراميږي، نو ځکه دې تکبير ته تکبير تحريمه ويل کيږي.

**د تکبير تحريمې حکم:** د ځينې علماو په آند تکبير تحريمه د لمانځه د خارجي فرايضو څخه گڼل کيږي او د ځينې نورو علماؤ په آند د د لمانځه د داخلي فرايضو څخه گڼل کيږي.

**تکبير تحريمه ته ځينې اړوند مسائل:** نارينه لمونځ کوونکی د نيت ويلو څخه وروسته، دواړه لاسونه د غوږونو تر نرميو او ښځينه لمونځ کوونکې به دواړه لاسونه تر اوږو پورته کوي او په هماغه حال کې به (الله اکبر) وايي.د لاسونو د پورته کولو په وخت کې بايد پام وشي چې د لاسونو کف (ورغوي) مخ په قبله وي.

– په تکبير تحريمه کې د لاسونو پورته کول د غوږونو څخه پورته يو مکروه عمل دی.

– د تکبير تحريمې د ويلو او د لاسونو پورته کولو په وخت کې بايد د لاسونو گوتې يوځای نښتې وي.

**یو ویشتم لوست**

**سرلیک: د ثنا معنی**

**مخ: ۴۱**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې – زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلای شي.
- په لمانځه کې ثنا په سمه توګه ولوستلای شي.
- د ثنا معنی او حکم وپیژني.

**اړینه پوهه**

ثنا: ثنا مصدر اسم دی، د مدح ستایلو او شکر په معنی دی او د هغه جمع اثنیه ده. ثنا په لمانځه کې د نیت او تکبیر تحریمې څخه وروسته ویل کیږي او حکم یې سنت دی. همدا رنګه د لاندې دعا ویل هم په احادیثو کې ثابت شوې چې په لمانځه کې ویل کیږي: ﴿أَقُولُ اللَّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِی وَبَيْنَ خَطَايَایَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ، اللَّهُمَّ نَقِّنِی مِنْ خَطَايَایَ كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ، اللَّهُمَّ اغْسِلْنِی مِنْ خَطَايَایَ بِالثَّلْجِ وَالْمَاءِ وَالْبَرَدِ ﴾ [بخاری]

ژباړه: پروردګاره! زما او زما ګناهونو ترمنځ د شرق او مغرب په شان واټن رامنځته کړه. پروردګاره! ما د ګناهونو نه داسې پاک کړه لکه سپینې جامې چې د کثافت او داغ څخه پاکیږي. الهی! زما ګناهونه په اوبو، یخ او ږلی باندی ومینځه.

د امام ابو یوسف په نزد د دې دعا ویل مستحب دی: ﴿إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنْ الْمُشْرِكِينَ﴾ قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (١٦٢) لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ﴾ [الأنعام:١٦٢-١٦٣].

ژباړه: ما خپل مخ هغه ذات ته ګرځولی چې ځمکه او آسمانونه یې پیداکړي او زه پرخپل دین ثابت قدم (موحد) یم او د مشرکانو څخه نه یم.

**دوه ویشتم لوست**

**سرلیک: تعوذ او تسمیه**

**مخ: ۴۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې– زده کوونکي باید:**

- تعوذ او تسمیه وپیژني.
- تعوذ او تسمیه معنی کړای شي.
- په لمانځه کې د تعوذ او تسمیې د ویلو په حکم پوه شي.

**اړینه پوهه**

تعوذ: د (أعوذ بالله من الشیطن الرجیم) ویلوته تعوذ یا استعاذه ویل کیږي. استعاذه د استفعال باب مصدر او د (ع – و–ذ) له ریښې څخه دی، د پناه وړلو او د مرستې غوښتنې په معنی دی. استعاذه د پناه غوښتنې په معنی ده او په اصطلاح کې پناه وړل الله پاک ته د ابلیس د شر او نفساني خواهشاتو څخه، او پایله یې الله پاک ته نږدیوالی دی. او دغه الله پاک ته پناه وړنه باید په الفاظو پورې محدوده نه وي د زړه د ژوروالي څخه راووځي. استعاذه په حقیقت کې د جني او انسي شیطانانو د وسوسو او د نفس د خواهشاتو پر وړاندې مقاومت او دریدنه ده.

**تسمیه:** یعنی (بسم الله ارحمن الرحیم) ویل په لمانځه کې او د ټولو عبادتونو، نیکو او شرعي اعمالو په پیل کې ده.

**د استعاذې حکم:** د سورتونو په پیل او یا هم د یوې سورې د یوې برخې د ویلو په وخت د استعاذې ویل مستحب دی او ځینې علماؤ یې واجب ګڼي ځکه الله پاک فرمایي: ﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِن

الشَّيطَانِ الرَّجِيمِ﴾ [النحل:۹۸]. ژباړه: نو کله چې دې قرآن تلاوت کاوه له رټلي شیطان څخه الله لره پناه یوسه.

په بل روایت کې راغلي دی: لومړی شئ چې جبریل علیه السلام د قرآن کریم په هکله پیغمبرﷺ ته وویل دا وه: (ای محمده! ووایه ( استعذ بالسمیع العلیم من الشیطن الرجیم) وروسته وویل: ووایه (بسم الله الرحمن الرحیم اقرأ باسم ربک الذی خلق...)

– قال رسولﷺ: (کان جبرئیل إذا جاءنی بالوحی أوَّلُ ماُ یلقی علیَّ بسم الله الرحمن الرحیم)[1]رسول اللهﷺ فرمایلي دي: کله چې جبرئیل علیه السلام زما څنگ ته د وحې سره راغللو نو لومړنۍ څه چې ماته یې القا کړ (بسم الله الرحمن الرحیم) وه.

**د تسمې فضیلت:** په دې حدیث شریف کې راغلي: «قال رسول صلی الله علیه وسلم: «إذا قال العبد بسم الله الرحمن الرحیم قال الله جل جلاله بداء عبد باسمی و حقُ علّی أن أتمم لُه أمورُه و ابارک له فی احواله»[2] ژباړه: کله چې څوک بسم الله الرحمن الرحیم ووایي، نو الله پاک فرمایي: زما بنده خپل کار زما په نوم پیل کړ نو پر ما لازمه ده تر څو د هغه کار پای ته ورسوم او د هغه په کار کې برکت واچوم.

**په لمانځه کې د تعوذ حکم:** په لمانځه کې تعوذ ویل وروسته د ثنا څخه سنت دی.

**تعوذ او تسمیه په لمانځه کې څه وخت ویل کیږي؟** کله چې لمونځ کوونکي ثنا وویله وروسته د شیطان شر څخه الله پاک ته پناه وړي یعنی ( اعوذ بالله من اشیطن الرجیم) وایي او وروسته (بسم الله الرحمن الرحیم) وایي.

**د تسمې حکم په لمانځه کې:** په لمانځه کې د تسمې ویل سنت دی.

---

[1]- سنن الداء قطنی، ج:۱، ص۳.۴

[2]- عیون الاخبار- ج۲- ص۲۶۹

**تسمیه د قرآن پاک د سورتونو په پیل کې:** ټولو اوه ډوله (سبعه قراؤ) په دې اجماع کړې چې د سورتونو د تلاوت په وخت کې د سورتونو ابتداء باید په (بسم الله ارحمن الرحیم) وشي، پرته له (توبې) سورې څخه همدا رنګه بسم الله الرحمن الرحیم سورتونه یو د بل سره بیلوي، نو مستحب یا واجب دی چې کله یو سورت پای ته ورسید قاري باید بل سورت په بسم الله الرحمن الرحیم پیل کړي.

**درویشتم او څلور ویشتم لوست**

**سرلیک: د تسمیع او تحمید معنی – د تسبیحاتو معنی**

**مخ: ۴۵– ۴۸**

**وخت: دوه درسي ساعتونه ( ۹۰ دقیقې )**

**موخې – زده کوونکي باید:**

- **د تسمیع، تحمید او تسبیحاتو سره په لمنځه کې اشنا شي.**
- **په لمانځه کې د تسمیع، تحمید او تسبیحاتو په معنی او پوه شي.**
- **په لمانځه کې تسمیع، تحمید او تسبیحاتو په سمه توګه ولوستلای شي.**
- **په دې راسخه عقیده پیدا کړي چې په لمانځه کې تسبیحات ډیر په تأمل او تعمق ویل کیږي.**

**اړینه پوهه**

**تسمیع: یعنی په لمانځه کې د (سمع الله لمن حمده) ویل دي.**

**تحمید: د (حَمّدَ، یحمدُ، تحمیدًا) مصدر دی (أی شکر الله) یعنی د الله پاک شکر پرځایول، په لمانځه کې د (رَبَّنا َو لَکَ الحمدُ) ویل دي.**

**تسبیحات: د تسبیح جمع ده، په لغت کې د الله پاک په پاکۍ سره یادونه، هغه د هر ډول بدی او هر هغه څه چې هغه ته نه ښایي، پاک او مبراء ګڼل دی. د ذکر او لمانځه په معنی هم راغلی. د تسبیح لفظ په قرآن پاک کې دوه ځلې د مضاف په حالت کې ذکر شوی: ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمَاوَاتُ السَّبْعُ وَالأَرْضُ وَمَن فِيهِنَّ وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلاَّ يُسَبِّحُ بِحَمْدَهِ وَلَكِن لاَّ تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴾(الاسراء:٤٤) ژباړه: ده ته اوه آسمانونه او ځمکه او څه چې په دوی کې دي تسبیح وایي. هیڅ شی نشته مګر دالله تسبیح او حمد وایي خو تاسو د دوی په تسبیح ویلو نه پوهیږئ بې شکه چې الله ډیر تحمل لري او ډیر ښنونکی دی.﴿ اَلَم تَر أَنَّ اللهُ یسَبِّح لُه مَن فِی السَّمَاواتِ وَالارضِ وَالطَّیر صَاقَّاتٍ کُلٌّ قَد عَلِمَ صَلاتُه و**

تسبِيحَهُ واللهُ عَلِيمٌ بِما يفعَلُونَ﴾. (النور:٤١) ژباړه: ته نه وينې چې د الله تسبیح وايي ځوک چې په آسمانونو او ځمکه کې دي او مرغان (هم) غوړولي وزرونه. دوي ټولو د خپل لمانځه او تسبیح طريقه پيژندلی ده او الله تعالی په هغو کارونو ښه پوه دی چې دوی يې کوي.

همدا رنګه پنځه مدني سورتونه حديد، حشر، صف، جمعه او تغابن او دوه مکي سورتونه ( اسراء) او (اعلی) د تسبیح سره پيل شوي دي چې دغو سورتونو ته (مسبيحات) ويل کيږي.په قرآن کريم کې په وار وار سره تسبیح ويلو ته امر شوی. الله پاک، د اسلام ستر پيغمبرﷺ او نورو أنبياءعليهم السلام ته د تسبیح ويلو امر کړای دی لکه څرنګه چې په دې مبارک آيت کې فرمايي: ﴿قَالَ رَبِّ اجعَل لِی آيَةً قَالَ آيتُکَ أَلَّا تُکَلِّمَ النَّاسَ ثَلاثَةَ أَيامٍ إِلَّا رمزًا وَاذكُر رَبَّکَ کَثيرًا وَ سَبِّح بِالعَشِيِّ وَالإِبكارِ﴾ (آل عمران:۴۱). ژباړه: عرض يې وکړ:زما څښتنه! نو ماته کومه نښنه وټاکه، ويې ويل: ستا نښنه داده چې ته به تر دريو ورځو پورې له اشارې پرته څه خبره ونه کړې (يا به يې ونه شي کړای) په دې موده کې خپل رب ډېر يادوه او سهار او ماښام د هغه د پاکۍ ستايونکی اوسه. يا هم په بل ځای کې فرمايي: ﴿فَسَبِّح بِحَمدِ رَبِّکَ وَ کُن مِنَ السَاجِدِينَ﴾ (الحجر:۹۸).

**په لمانځه کې د تسميع، تحميد او د تسبيحاتو ويلو ځای**

کله چې لمونځ کوونکی د قرائت د پای ته رسيدو څخه وروسته (الله اکبر) ووايي او رکوع ته به ځي. په رکوع کې به خپل لاسونه پر زنګنونو ږدي (د لاسونو په ګوتو به زنګنونه نيسي) دلته بايد پام وشي تر څو سر، اوږې او ملا په يوه افقي خط کې واقع شي، د رکوع په حالت کې لمونځ کوونکی بايد په ډيرې ډاډينې او فکري تمرکز سره لږ تر لږه درې ځلې تسبیح ووايي.

**د رکوع تسبيح:** (سُبحان رَبِّيَ العَظِيم) يعنی پاک او غوره دی زما با عظمته پروردګار. او دا تسبیح د دريو څخه زيات هم لوستل کيږي لکه پنځه ځلې، اوه ځلې او نه (۹) ځلې په دې شرط چې شمير يې طاق وي. په رکوع او سجده کې زياتې تسبیح ويل هغه وخت غوره دی کله چې لمونځ کوونکی يواځې لمونځ اداء کوئ او که چيرې لمونځ په جماعت وي نو زياتې تسبیح بايد ونه ويل شي ځکه پر امام لازمه ده تر څو مقتديان پريشانه او ستړي نه کړي.

**د رکوع د تسبيح حکم:** په لمانځه کې د رکوع په وخت کې درې ځلې تسبیح ويل سنت دی.

**تسمیع او تحمید:** لمونځ کوونکی د رکوع څخه وروسته (سمع الله لمن حمده) وايي مستقيماً په ډېره ارامۍ او سکون سره دريږي په دې حالت کې خپل لاسونه خوشې کوي او وايي (رَبَّنا َو لَکَ الحمدُ) ای پروردگاره ټول وصفونه او تعریفونه ستا د شأن سره ښايي. همدا رنګه سنت دی چې وروسته د (رَبَّنا َو لَکَ الحمدُ) څخه (حمداً کثیراً طیباً مبارکاً فیه) هم وویل شي.

– که چیرې تاسو مقتدی وی، نو امام کله چې (سَمعَ اللهُ لِمَن حَمِدَهُ) وويل، تاسو باید (رَبَّنا َو لَکَ الحمدُ) ووایئ. او که چیرې لمونځ مو يواځې اداء کولو نو تسمیع او تحمید دواړه به ووایئ.

**د تسمیع او تحمید حکم:** د لمانځه په قومه کې د تسمیع او تحمید ويل دواړه سنت دي.

**د سجدې تسبیح:** د قومې څخه وروسته لمونځ کوونکی به تکبیر (الله اکبر) ووايي او سجدې ته به لاړ شي. سجده به داسې اداء کوو: لومړی دواړه زنګنونه به پر ځمکه ږدو وروسته دواړه لاسونه وروسته پوزه او تندی په دې ډول چې د دواړو لاسونو د ورغوو ترمنځ واقع شي. غټه ګوته به د غوږونو مخامخ واقع شي، نورې ګوتې مخ په قبله وي. متې او لیچې د ځنګ او بطن څخه لرې واقع شي او همدا رنګه ورنونه باید د بطن څخه لرې (جدا) وي په سجده کې لږ تر لږه باید درې ځلې په ډېر تأمل آرامۍ او ژورتیا سره (سُبْحَانَ رَبِّی الْأَعلی) (پاک او برتردی زما لوړ مرتبه رب) وويل شي. د دې تسبیح څخه پرته نور تسبیحات هم مسنون دي لکه: (سبحانک اللهم و بحمدک اللهم اغفرلی). (سبوح، قدوسُ، رب الملائکة و الروح).

**د ښځینه سجده:** د ښځینوو ګیډه (بطن) باید د پښو سره نښتې وي.
– متې يې دوو ځنګو ته نښتې وي.
– پښې يې باید د نارینوو په شان دریدلې نه وې باید دواړه پښې يې ملاستې وي.
**د سجدې د تسبیح حکم:** په لمانځه کې په سجده کې لږ تر لږه درې ځلې باید تسبیح وويل شي.

**پنځه ویشتم لوست**

**سرلیک: سلام**

**مخ:۴۹**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې– زده کوونکي باید:**

- په لمانځه کې د سلام او د هغه حکم سره آشنا شي.
- په لمانځه کې د سلام په معنی پوه شي.
- په ټولنه کې یو بل ته د سلام او د هغه د ځواب ورکولو پر حکم پوه شي.
- درک کړي چې یو بل ته سلام ویل په خپلو منځو کې سلامتي خوروي.

**اړینه پوهه**

**سلام:** د سلامتی، امن، سولې، صفا او آرامۍ په معنی دی. په لغت کې د هر ډول نقص، عیب او فنا څخه سلامتي ته ویل کیږي. او دا چې الله پاک نه فناکیږي او همدا رنګه د هر ډول نقص او عیب څخه پاک دی نو ځکه د الله پاک د نومونو څخه یو نوم یې (سلام) دی.

یو د بل سره د لیدلو او کتلو په وخت کې د هر ډول مینې ښکارولو ته (تحیت) ویل کیږي، نو په اصل کې سلام د هماغه حیات د مادې څخه دی چې د نورو د حیات او سلامتۍ لپاره د دعا کولو په معنی دی، که دا دعا د (اسلام علیکم) او یا د (السلام علینا) او یا هم د (حیاک الله) په بڼه وي.

**سلام په قرآن او حدیث کې:** د سلام د ارزښت په قرآن پاک او احادیثو کې هم یادونه شوې ده، په قرآن کریم کې د سلام کلمه څلویښت ځلې ذکر شوی دی. الله جل جلاله پر خپلو انبیاؤ باندې سلام وایي: ﴿وَ سَلَامٌ عَلَى الْمُرسَلِينَ﴾ (الصافات:۱۸). پرېښتې هم جنتیان د سلام په ویلو سره هغوی جنت ته داخلوي: ﴿ادخُلُوها بِسَلَامٍ

**ذلکَ یَومُ الخُلُود﴾** (ق: ۳۴). ژباړه: جنت ته له سلامتیا سره ننوځئ د هغه ورځ به د ابدي ژوندانه ورځ. رسول اللهﷺ هم په دې اړه فرمايي: (يا أنس! سلم على من لقيت من أمتي تكثر حسناتک، وصل فی بيتک يکثر خير بيتک)[1]. ژباړه: ای أنس! سلام ووايه پر هغه چا چې ملاقات ورسره کوې تر څو الله پاک ستا پر حسناتو ور زيات کړي او لمونځ اداء کړه تر څو الله پاک ستا په کور کې برکتونه زيات کړي.

**د سلام او د هغه د ځواب حکم:** د سلام د ارزښت د دلايلو څخه يو هم دادی چې په شريعت کې د سلام ځواب واجب دی. نو پخپلو کې يو پر بل د سلام ويلو حکم سنت دی او ځواب يې واجب دی.

**سلام په لمانځه کې:** د لمانځه آخري برخه چې د هغې په ويلو لمونځ پای ته رسيږي، سلام دی. لمونځ کوونکی د تشهد، درود او دعا ويلو څخه وروسته، لومړی خپل مخ ښي اوږې خوا ته اړوي او وايي (اسلام عليکم ورحمة الله) پر تا د الله رحمت او سلامتي دې وي وروسته خپل مخ کيڼ خواته اړوي او وايي (اسلام عليکم ورحمة الله) لمونځ کوونکی د لمانځه د پای ته رسيدو څخه وروسته هره جائزه دعا چې غواړي لولي. چې په دې اړه د نبی کريمﷺ څخه ډيرې دعاگانې او اذکار تثبيت شوي دي.

**په لمانځه کې د سلام حکم:** په لمانځه کې د لمانځه څخه د وتلو برخه فرض ده او د لمانځه څخه وتل د (اسلام عليکم ورحمة الله) په ويلو سره سنت دی.

**د سلام څخه وروسته دعا:** په لمانځه کې د سلام څخه وروسته ځينې دعاوې چې ويل کيږي، په لاندې ډول ذکر کيږي.

۱- «استغفرالله، استغفرُالله، استغفرُالله، اللهم انتَ السَّلامُ وَ مِنکَ السَّلامُ تَبَارکتَ یا ذَاالجَلالِ وَالإکرَامِ» [مسلم].

ژباړه : الله زه له تا څخه بښنه غواړم، ای الله زه له تا څخه استغفار او بښنه غواړم، ای الله زه له تا څخه بښنه غوړام. الهی! سرتر سره سلامتي او نيکي يي، او ټولې نيکۍ او سلامتۍ ستا له طرفه دي، ډير با برکته يي، ای د لوړې مرتبې خاونده، احسان کوونکی او کرم کوونکی يي.

[1] ـ الترغيب فی فضائل الأعمال و ثواب – ص: ۵۴

۲- «اللهُمَّ اعَنِّی عَلی ذِکرِکَ وَشُکرِکَ وَحُسنِ عِبَادَتِکَ»[ یاض الصالحین] ژباړه: الهی ما ته توفیق راکړه، چې دایم تا یاد کړم، ستا د نعمتونو شکر پر ځای کړم او ستا د بندګۍ حق په سمه توګه اداء کړم.

۳- (سبحان الله) ۳۳ وارې، (الحمدلله) ۳۳ وارې، (الله اکبر) ۳۳ وارې، او یو ځلې (لا إله الا الله وحدَهُ لا شریک لَهُ، لَهُ المُلک وَلَهُ الحَمدُ وَ هُوَ علی کُلِّ شیءٍ قَدِیر) [صحیح المسلم]. خدایه! پاکي او غوره والی ستا لپاره دی، خدایه! ټولې ستاینې ستا لپاره دي، الله لوی دی. نشته هیڅ معبود مګر الله، الله یو دی شریک نه لري، د فرمانروایۍ حق یواځې د الله پاک دی، حمد، ستاینه او شکر خاص د الله لپاره دی، او هغه پر هر څه قادر دی.

## شپږویشتم لوست

**سرلیک: د خوب آداب**

**مخ: ۵۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- په اسلامي ادابو ویده کیدل زده کړي.
- د ویده کیدلو او راپاڅیدلو دعاوې زده او نورو ته یې بیان کړي.
- په دې باور ولرو چې د سنتو سره سم ویده کیدل د ثواب برسېره د انسان صحت ته هم ګټور دی.

د ځنو کلمو معناوې: (نعمت): نیکی، احسان، مال، روزی. (دروغ): هغه وینا چې حقیقت ونه لري او رښتیا ضد دي.

**اړینه پوهه**

**د خوب ادبونه:** خوب د الله له نعمتونو څخه یو نعمت دی او د الله د قدرت نښه ده. الله جل جلاله فرمایي: ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ مَنَامُكُم بِاللَّيْلِ...﴾ [الروم:۲۳]. ژباړه: او د هغه له نښانو څخه په شپه کې ستاسې ویده کیدل دي. ددې لپاره چې مسلمان د خپل خوب نه ګټه تر لاسه کړې وي او هغه هم په عبادت بدل کړي نو په درسي کتاب برسېره ځنې نور ادبونه باید مراعات کړو لکه:

**د وختي ویده کیدل:** مسلمان د لماخستن له لمانځه اداء کولو وروسته ژر ویده کیږي مګر دا چې ضروري کار ولري لکه علمي مطالعه، دا د دې لپاره چې سهار وختي پاڅیږي د سهار لمونځ اداء کړي او خپله ورځ په تازګۍ او خوشحالۍ پیل کړي.

**په اوداسه ویده کیدل: پیغمبرﷺ فرمايي:** (إِذا أَتيت مضجعك فَتَوَضَّأ وضوءك للصَّلَاة)[متفق عليه] **یعنی هر کله چې خپلې بسترې ته راغلې نو د لمانځه په شان اودس وکړه.**

**په پاک ځای کې ویده کیدل:** مسلمان د خوب د ځای پاکوالي ته ارزښت ورکوي او د خوب په ځای کې د خوړلو او څښلو څخه ډډه کوي.

**په ښي اړخ ویده کیدل:** د خوب په پیل کې باید په ښي اړخ څملو، وروسته که په هر اړخ شو څه پروا نه لري.

**د نفس سره محاسبه:** مسلمان پوهیږي چې خوب یو ډول مرگ دی نو باید د ځان سره محاسبه وکړو او څه چې مونږ د ورځې په اوږدو کې کړي دي هغه وڅیړو که نتیجه په خیر وه د الله ستاینه او شکر اداء کړو څو نیک کارونه مو لازیات شي خو که د محاسبې نتیجه او پایله شر او نا خوښه وه د الله نه بخښنه وغواړو او توبه وباسو.

**د خوب لیدلو آداب:** مسلمان که خوب ولیده چې ښه او نیک ؤ د هغه دوستانو ته زیری ورکړي او هغه خوب ورته بیان کړي او که یې بد خوب ولیده غوره ده چې چا ته بیان نکړي او د هغه له شر څخه الله ته پناه یوسي.

**د خوب په وخت کې دعا کول:** د نبی کریمﷺ څخه د خوب په وخت کې ډیرې دعاوې او ذکرونه د ویلو نقل شوي دی،غوره مسلمان له هغه څخه گټه اخلی او دایم یې په ژوند کې وایي، دا دعا په لاندې ډول ده:

«اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا» [بخاری] یعنی الهی: ستا په نامه مړکیږم او ژوندی کیږم. او یا دغه دعاء ووايي: «بِاسْمِكَ رَبِّي وضعت جَنْبِي وَبِك أرفعه، إِن أَمْسَكت نَفسِي فارحمها، وَإِن أرسلتها فاحفظها بِمَا تحفظ بِهِ عِبَادك الصَّالِحين» [متفق عليه]. یعنی ستا په نامه یې خپله ډډه پر ځمکه کیښوده او ستا په مرسته له حمکې راجیگیږم ککه د خوب په حالت کې دې زما روح واخسته نو ماته بخښنه وکړه او که دې دوهم ځلي د ژوند اجازه راکړه هغه وساته لکه څنگه چې خپل نیک او صالح بندگان دې ساتې.

**د خوب نه د راجګیدو دعا:** د خوب څخه د راجګیدو په وخت کې دغه دعا ویل کیږي: «الحَمْدُ لِلَّه الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْه النُّشُور»[بخاری]. یعنی حمد او ثنا هغه الله لره دي چې له مړه کیدلو وروسته یې را ژوندی کړم او بیرته راګرځیدنه د همده لوري ته ده.

**په خوب کې منځګړیتوب او اعتدال:** په هر شي کې اعتدال او منځګړیتوب د مسلمان له نښو څخه دی او مسلمان په خوب کې هم د اعتدال څخه کار اخلي ځکه ډیر خوب د تنبلۍ او سستۍ لامل کیږي.

## اووه ویشتم لوست

**سرلیک: د کوره د وتلو دعا**

**مخ: ۵۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د کورنه د وتلو دعا زده کړي.
- د کور څخه د وتلو دعا بل ته بیان کړی شي.
- په مسنونه دعاوو یې باور پیدا او الله ﷻ خپل مددګار وګڼي .
- په خپل ژوندانه کې مسنون اذکار عملي کړي.

**اړینه پوهه**

**دُعا:** د غوښتنې په معنا ده یعنی د الله نه غوښتنه او هغه ته عاجزي کول په مختلفو وختونو کې څو خیر او برکت زموږ په برخه او حاجتونه مو پوره شي.

د اسلام پیغمبر موږ ته څه لارښوونې کړې دي چې باید هغه په نظر کې ونیسو او د یوه مسلمان په توګه هغه زده کړو.مسنونه دعاوې هم هغه دعاوې دي چې رسول الله موږ ته بیان کړې دي لکه بیرون ته د تللو دعا، کورته د ننوتلو دعا، د خوب دعا د خوب څخه د راویښیدولو دعا چې دلته مونږ په لنډه توګه ځینې دعا وې بیانوو:

**د کور ځخه د وتلو دعا:**حضرت انس بن مالکؓ د نبی کریمﷺ وفرمايل: څوک چې له کوره وځي او دا دعا ووايي: (بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ) [رواه الترمذی]. چې په ځواب کې يې ويل کيږي:

۱- تا ته حقې لارې لارښوونه وشوه يعنې کله چې د الله د نامه په يادولو له کوره ووتلې الله تعالی ستا ساتونکی دی.

۲- ستا ټولې اړتياوې پوره کيږي يعنی کله چې د الله په نامه له کوره ووتلې، الله تعالی خپل نعمتونه پرتا پيرزو کړي دي او ستا اړتياوې يې پوره کړې دي.

۳- له هر ډول شر او فتنې ځخه په امان کې پاتې يې يعنې د الله په توکل سره د بلا له شر او پريشانيو ځخه ساتل شوی يې او ځان او مال دې الله ساتي.

## کور ته د راتگ دعا

له ابو مالک اشجعیؓ ځخه روايت دی چی رسول اللهﷺ وفرمايل: کله چې څوک خپل کورته ننوځي بايد ووايي: (اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ المَوْلَجِ،وخَيْرَ المَخْرَجِ،بِسْمِ الله وَلَجْنا، وباسْمِ الله خَرَجْنا، وعَلى الله رَبِّنا تَوَكَّلْنا، ثُمَّ لِيُسَلِّمْ على أَهْلِه) [رواه ابو داود]. يعنی: «الهي! له تا ځخه غواړم چې ننوتل مې کور ته په خير وي، د الله په نامه داخل شوو او د الله په نامه ووتلو، پروردگاره! په تا مونږ توکل کړی، او ورپسې خپلې کورنۍ ته دې سلام وکړي».

**اته ویشتم لوست**

**سرلیک: نیک اخلاق**

**مخ: ۵۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې- زده کوونکي باید:**

- د اخلاقو فضلیتونه زده کړي.
- اخلاقي فضائل نورو ته بیان کړی شي.
- په نیکو اخلاقو باور پیدا کړي او ځانونه وربانديې سنبال کړي.

**د ځنو کلمو معناوي: اثقل: ډېر درووند - (المیزان): تله - (الخلق الحسن): نیک اخلاق او خوبونه**

**اړینه پوهه**

**نیک اخلاق:** اخلاق د خُلق جمع ده د ښه چلن، نیکی، طبعیت او ښیګنې په معنی ده چې معمولاً په نیکو طریقو یې اطلاق کیدای شي، همدا رنګه د دین په معنا هم راځي. او په اصطلاح کې د انسان د روحي او باطني صفتونو مجموعه ده. یا په بله وینا اخلاق عبارت له هغو صفتونو څخه دی چې انسانان یو د بل سره چلند کوي چې ښو او بدو ته شاملیږي.

**ښه او بد اخلاق:** هر کله چې د چا خوی او طبیعت داسې وي چې له هغه څخه ښه کارونه صادر شي، هغه ته ښه اخلاق او هر کله چې دچا څخه بد کارونه صادر شي، هغه ته بد اخلاق ویل کیږي.

**د پیغمبر ﷺ د اخلاقو بېلګې**

قرآنکریم حضرت محمدﷺ د اخلاقو په ډیرو لوړو بیلګو معرفي کړی دی او فرمايي: ﴿وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾ [القلم:٤]. ژباړه: او بیشکه ته د لوړو اخلاقو مرتبه لرې.

په ډېرو آيتونو برسېره ډېر نبوي احاديث هم شتون لري چې د پيغمبرﷺ د شخصيت او دمسلمان د اخلاقو او دندو په هکله راغلي دي چې ځنې د بېلګې په توګه داسې بيانوو: «إِنَّما بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ مَكَارِمَ الْأَخْلَاقِ» [السنن الكبرى للبيهقي].ژباړه: يقيناً زه د نيکو اخلاقو د تکميليدو لپاره راليږل شوی يم.

عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما قال: «لَمْ يَكُنْ رَسولُ اللهِ ﷺ فَاحِشاً، وَلا مُتَفَحِّشاً، وكان يقول: إِنَّ مِنْ خِيَارِكم: أَحْسَنُكُمْ أَخْلاقًا». [متفق عليه]

عبد الله عمرو بن العاص رضي الله عنهما وايي: چې پيغمبرﷺ نه بد کردار ؤ او نه يې بده خبره کوله او فرمايل به يې يقيناً غوره ستاسو هغه دی چې اخلاق يې نيک وي.

چا د بی بی عائشې رضي الله عنها څخه د رسول الله ﷺ د اخلاقو په هکله پوښتنه وکړه په ځواب کې و فرمايل: «كانَ خُلُقُه القرآن» [رواه مسلم] يعنی د رسول اللهﷺ ټول اخلاق د قرآن سره موافق وو.

«إِنَّ الْمُؤْمَنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِه دَرَجَةَ قَائِمِ اللَّيْل وصائم النَّهَار». [رواه أَبُودَاوُد] ژباړه: مؤمن د نيکو اخلاقو په درلودلو سره د هغه چا درجه لاس ته راوړي چې شپې په عبادت او ورځې په روژه لرلو تيروي.

همدا رنګه په يوه بل حديث کې فرمايي:«أَكْمَلُ الْمُؤْمِنينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا» [رواه أَبُودَاوُد]. ژباړه: تر ټولو کامل مؤمنان هغه دي چې اخلاق يې تر ټولو نيک وي. په دې حديث کې يې نيک اخلاق د ايمان تکميلوونکي ګڼلي دي.

**نه ویشتم لوست**

**سرلیک: د منافق نښې**

**مخ:۵۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې– زده کوونکي باید:**

- د منافق نښې وپېژني.
- د منافق نښې نورو ته بیان کړی شي.
- عقیده ولري چې دروغ ویل، ژمنه ماتول او خیانت د منافق له نښو څخه دي او له هغو څخه ځان وژغوري.

د ځنو کلمو معناوې:

| | |
|---|---|
| (آیة المنافق): د منافق نښه | (إذا مؤتمن): هر کله چې امن وګرځول شي. |
| (خانَ): خیانت کوي | (اذا وعدَ): کله چې ژمنه وکړي. |
| (کذبَ): دروغ وایي | (اخلفَ): تخلف کوي یعنی ژمنه ماتوي. |

**اړینه پوهه**

**منافق:** دوه ژبی او دوه مخی، څوک چې ظاهر یې د باطن په خلاف وي، څوک چې ظاهراً دوستی او په باطن کې دښمن اوسي او منافقت د خلکو ترمنځ اختلاف اچول دي. الله تعالی او پیغمبرﷺ مورږ مسلمانانو ته په رښتیا او صداقت امر کړی دی او له دروغو څخه چې د منافق له نښو څخه دی؛ منع کړې ده. لکه څنګه چې په قرآن کریم کې راغلي دي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾ [التوبة: ١١٩] ژباړه: اې مؤمنانو! له الله نه وويرېږئ او د رښتینو خلکو ملګري شئ.

الله ﷻ د منافق بدي ویلې ده او ځنې ځانګړتیاوې یې په قرآن کریم کې بیان کړې دي: ﴿الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ نَسُواْ اللّهَ فَنَسِيَهُمْ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ [التوبة: ٦٧] ژباړه: نو الله دوی هم هیر کړل په یقیني ډول دا منافقان همدوی فاسقان دي.

« يَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ » خپل لاسونه رانیسي یعنی بخل کوي او احسان او اتفاق نه کوي.

« الْفَاسِقُونَ » هغه کسان چې د الله له فرمانه بیرون وځي او ګمراه کیږي.

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «لا إيمانَ لِمَن لا أمانَةَ له، ولا دِينَ لِمَن لا عهدَ له» [متفق علیه] څوک چې امانت نه رعایت کوي هغه ایمان نه لري او څوک چې په ژمنه پابند نه وي، هغه دین نه لري. نو پر موږ لازمه ده څو ځان په رښتیا او صداقت سنبال او له دروغو، خیانت، ژمنه ماتولو، بخل، په بدۍ له امر کولو ډډه وکړو څو د دنیا او آخرت کامیابی مو په برخه شي.

**دیرشم لوست**

**سرلیک: مسلمان**

**مخ: ۵۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې– زده کوونکي باید:**

- دمسلمان ځانګړتیاوې وپیژني.
- د مسلمان صفتونه نورو ته بیان کړی شي.
- درک کړي چې واقعی مسلمان غیبت، ظلم او په نورو تیری نه کوي.

**د ځنوکلماتو معناوې:** (من لسانِه): د ژبې له شره یې – (ویَدِه): د لاس له شره یې – (سَلِم): سالم پاتې شي.

**اړینه پوهه**

**مسلمان:** موږ د مسلمان په توګه په ټولنه کې یو لړ مسؤلیتونه لرو چې باید هغو ته پایبند واوسو او د الهی اوامرو سره سم د ترقۍ او پرمختګ په لوري ګام په ګام قدم اوچت کړو ترڅو موږ د یوه مسلمان په صفت مسؤولیت ومنو او په خپلو دندو عمل وکړو او ځان په اسلامي اخلاقو او آدابو سنبال کړو څو زموږ د دنیا او آخرت د کامیابۍ لامل وګرځي. دا موضوع په یوه صفحه یا یوه مقاله کې نه ځائیږي که کتابونه تألیف شي بیا هم کم دي، ګواګي له بحر څخه به مو یو څاڅکی اخستی وي چې ډیر کم دی، خو په لنډه توګه څه نکتې مطرح کوو چې مسلمان باید هغه په نظر کې ونیسي.

الله تعالی فرمایي: ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ [آل عمران: ۱۱۰]

ژباړه: په نړۍ کې هغه غوره ډله تاسې یاست چې د انسانانو د لاربنوونې او اصلاح لپاره منځ ته راوړل شوې ده، تاسې د نیکۍ امر کوی او له بدیو منع کوئ.

همدا رنګه الله ﷻ د مسلمان صفتونه او خویونه په نیکۍ یاد کړي او فرمايي: ﴿وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللّهَ وَرَسُولَهُ أُوْلَئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ [التوبة: ٧١] **ژباړه:** مؤمنان نارینه او مؤمنان ښځې دا ټول د یو او بل دوستان دي په ښو چارو امر او له بدیو منع کوي، لمونځونه قایموي، زکات ورکوي او د الله او د هغه د پیغمبر اطاعت کوي دا هغه کسان دي چې پر هغو به د الله رحمت نازلیږي، بیشکه الله برلاسی او حکیم دی.

په بل ځای کې الله ﷻ مؤمنانو ته لاربښوونه کوي او هغو ته هدایت کوي څو مؤمنان یو او بل ته په بدو نومونو او ناوړه لقبونو غږ ونکړي لکه چې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَومٌ مِّن قَوْمٍ عَسَى أَن يَكُونُوا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَاء مِّن نِّسَاء عَسَى أَن يَكُنَّ خَيْراً مِّنْهُنَّ وَلَا تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الاِسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ وَمَن لَّمْ يَتُبْ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ [الحجرات:١١]. **ژباړه:** اې مؤمنانو: یو قوم دې پر بل قوم ملنډې نه وهي، ښايي چې هغوی له دوی نه غوره وي او نه دې ښځې په نورو ښځو ټوکې کوي، کیدای شي چې هغوی له دوی نه غوره وي په خپلو منځو کې یو د بل طعن مه وایئ او مه یو بل په بدو نومونو سره یادوئ له ایمان راوړلو وروسته په فسق کې نوم پیدا کول ډیره بده خبره ده کوم کسان چې له دغه چار چلند څخه لاس وانخلي او توبه ونکړي هغوی ظالمان دي.

وريسې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيراً مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضاً أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتاً فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ﴾[الحجرات:١٢]

ژباړه: ای مؤمنانو: له ډیرو ګومانونو کولو ته ډډه وکړئ چې ځنې ګمانونه ګناه وي، د چاپټ عیبونه مه لټوئ او له تاسې نه دې څوک د چا غیبت نه کوي، ایا په تاسې کې داسې څوک شته چې د خپل مړ ورور غوښې خوړل خوښ کړي؟ ګورئ تاسې په خپله ددې نه کرکه کوی الله نه وووېرمېږئ، الله توبه قبلوونکی او خورا مهربان دی.

**همدا رنگه رسول اکرمﷺ فرمايي:«المؤمُن مِرْآةُ المؤمنِ، والمؤمُن أخو المؤمنِ، َيكُفُّ عليه ضَيْعَتَهُ، ويَحُوطُه من ورائه»**[سنن ابو داود] **ژباړه: مؤمن د مؤمن لپاره آيينه ده، مؤمن د مؤمن ورور دی، پانگه يې ورته ساتی او په غياب کې ورڅخه ملاتړ کوي.**

**یو دیرشم لوست**

**سرلیک: روغتیا**

**مخ: ۶۰**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې– زده کوونکي باید:**

- د روغتیا او د هغې د ارزښت په هکله معلومات حاصل کړي.
- د روغتیا ارزښت په اسلام کې وپیژني او نورو ته یې بیان کړی شي.
- دا خبره درک کړي چې د حفظ الصحة رعایتول ددې لامل کیږي چې سالم او جوړ واوسو.

**د ځنو کلمو معناوې: مغبون: متضرر – زیانمن، نعمتان: دوه نعمتونه، الصحة: جوړ والی، صحتمندي، الفراغ: وزګارتیا**

**اړینه پوهه**

**یوه هغه مهمه موضوع چې اسلام ورته زیاته توجه لري او مسلمانان هغې ته تشویقوي او هڅوي یې روغتیا ده، البته د بدن جوړ والی او روغتیا تر نظافت او پاکۍ پورې اړه لري ددې موضوع په هکله الله تعالي فرمایي: ﴿ إِنَّ اللّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴾ [البقره:۲۲۲] ژباړه: د الله هغه خلک خوښیږي چې له بدۍ نه توبه وباسي یعنی لاس ترې واخلي او سپیڅلتیا غوره کړي.**

**همدا رنګه نبوی سنتونه لکه مسواک وهل، د جمعې او عیدینو په ورځو غسل کول، د جامې پاک ساتل، د کور جومات، کوڅې او ښوونځي پاک ساتل روښانه نښې دي پر دې چې اسلام روغتیا او د مسلمانانو او ټولنې صحت ته ځومره توجه کړې ده لکه چې رسول اللهﷺ فرمایي: «قَالَ رَسُولُ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّم: الْمُؤمن الْقَوِيُّ خَيْرٌ وَأَحَبَّ إِلَى اللَّهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ, وَفِي كُلٍّ خَيْرٌ, احْرِصْ عَلَى مَا يَنْفَعُكَ وَاسْتَعِنْ**

**بِاللَّه وَلاَ تَعْجَزْ. وَإِنْ أَصَابَكَ شَيْءٌ فَلاَ تَقُلْ: لَوْ أَنِّي فَعَلْتُ كَذَا لَكَانَ كَذَا وَكَذَا, وَلَكِنْ قُلْ: قَدَّرَ اللَّهُ وَمَا شَاءَ فَعَلَ, فَإِنَّ "لَوْ" تَفْتَحُ عَمَلَ الشَّيْطَانِ».**[رواه مسلم]

**ژباړه: رسول الله ﷺ و فرمايل: د الله په وړاندې قوي او پياوړی مؤمن له ضعيف او بيوزلی مؤمن څخه غوره او ډېر ګران دی، خو په هر يوه کې متفاوت خير او برکت شتون لري. او ته اې مسلمانه په خپله نفع او ګټه حريص اوسه او له الله نه مرسته غواړه، عجز او ناتوانۍ ته غاړه مه ږده او که څه نا خوښ کار درته مخکې شو مه وايه: که داسې مې کړي وای داسې او داسې به شوي وای بلکې ووايه: د الله تقدير همداسې ؤ او الله چې هر کار وغواړي همغه ترسره کوي ځکه د لفظ شيطاني وسوسو ته پراختيا ورکوي.**

**نو د پاسنۍ لارښوونې سره سم پر موږ لازمه ده څو د مسلمان په توګه خپل بدن، جامې، کور، کوڅه او خپل جومات پاک وساتو څو روغ او سالم واوسو او خپل ځان، کورنۍ او اسلامي ټولنې ته خدمت وکړو.**

**دوه دیرشم لوست**

**سرلیک: په حیواناتو او څارویو ترحم**

**مخ: ٦٣**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې زده کوونکي باید:**

- وپوهیږي چې څاروي هم حقوق لري.
- د څارویو حقوق وپیژنوو او نورو ته یې بیان کړی شو.
- دا خبره درک کړو چې څارویو ته آزار او ضرر رسول گناه ده او ترحم پرې ثواب لري.

**اړینه پوهه**

**په حیواناتو باندې رحم کول:** د اسلام سپیڅلي دین پر حیواناتو باندې د مهربانۍ او زړه سوي تاکید کړی، نو مسلمان باید څارویو ته خوراک، اوبه او مناسب ځای چمتو کړي او د الله شکر او مننه وکړي چې حیوانات یې د ده د خدمت لپاره تابع کړي دي. نو باید په سمه توگه له دوی څخه استفاده وکړو.

الله ﷻ انسان پیدا کړ او هغه ته یې کرامت ور وباښه او دا توان یې ورکړ ترڅو د حیواناتو څخه د خپلو اړتیاوو د تأمین لپاره، گټه واخلي. د غوښې او شیدو څخه یې خواړو لاس ته راوړي او له وړیو څخه یې ځان ته جامې جوړې کړي او ځنو حیواناتو څخه د بار وړلو او سپرلۍ کار واخلي. که څه هم د حمل او نقل وسایل ډېر شوي خو په سختو لارو کې له حیواناتو اوس هم پوره کار اخستل کیږي.

الله تعالی فرمايي: وَالأَنْعَامَ خَلَقَهَا لَكُمْ فِيهَا دِفْءٌ وَمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٥﴾ وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ حِينَ تُرِيحُونَ وَحِينَ تَسْرَحُونَ ﴿٦﴾ وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلَى بَلَدٍ لَّمْ تَكُونُواْ بَالِغِيهِ إِلاَّ بِشِقِّ الأَنفُسِ إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَؤُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٧﴾ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً وَيَخْلُقُ مَا لاَ تَعْلَمُونَ ﴿٨﴾ [النحل: ٨-٥]

ژباړه: او څاروي یې پیدا کړل چې په هغو کې ستاسو لپاره ګرم پوښاک او نورې ګټې شته او له هغو نه خوراک هم کوئ. او (داهم) ستاسو ته یو ډول ښکلا ده پکې چې سهار یې وباسئ او ماښام یې بیرته راولئ. او ستاسو درانه پیتي تر هغې سیمې وړي چې تاسو له ډیر کړاو ګاللو پرته نشئ رسولی، رېښتیا چې ستاسو رب خامخا ډیر مهربانه خواخوږی دی، اسونه، کچر او خره یې هم د دې لپاره پیدا کړل چې هم پرې سپاره شئ او هم ښکلا وي او نور داسې شیان هم پیدا کوي چې تاسو ورباندې نه پوهیږئ.

همدا رنګه رسول الله ﷺ صحابه وو ته بیان کوي چې یو سړی په یوه لاره تللو سخت تږی شو او په اوبو پسې ګرځیده. یو کوهی یې ولید هلته ورکوز شو او اوبه یې وڅښلې او بیرته ورڅخه راوخوت، ناڅاپه یې یو سپی ولیده چې د ډیرې تندې څخه یې ژبه را ایستلې او لمده خاوره څټي. د ځان سره یې وویل دا سپی هم زما په څیر تږی شوی دی بیا څا ته کوز شو او خپله پنه یې د اوبو څخه را ډکه او په خپله خوله کې یې ونیوه له کوهي څخه را اوچت شو او سپي ته یې اوبه ورکړې الله تعالی ددې عمل اجر ورکړ او هغه ته یې ښښنه وکړه. صحابه وو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ایا د حیواناتو سره په مرسته کولو اجر او بدله ورکول کیږي حضرت رسول الله ﷺ وفرمایل: (فِي كل ذَات كَبِد رَطْبَة أجر) د هر تازه جګر (روح لرونکي سره) (مرسته) اجر لري. [متفق علیه]

نبی کریم ﷺ د میږتونو ځاله ولیده چې صحابه وو سوځولې وه پوښتنه وکړه: (مَنْ حَرَّقَ هَذه) یعنی دا چا سوځولې ده؟ ویې ویل موږ. رسول الله ﷺ وفرمایل: «إِنَّه لَا يَنْبَغِي أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ» [ابوداود] یعنی لایقه او مناسب نده چې پرته د اور له خاوند څخه بل څوک چاته په اور عذاب ورکړي.

مسلمان حیوان یا الوتونکي نه آزاروي څه وار ددې شو چې په اور عذاب ورکړي. ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ سره په سفر کې وه. پر اوښ سپره وه او هغه یې په تیزۍ سره ځغلولو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: (علیک بالرفق) [مسلم]. یعنې پرتا لازمه ده چې د هغه سره په نرمۍ چلند وکړې.